# الإلحاد - إعلان نجاح أم فشل؟

# الحاد

## د خپل ځان لپاره مرسته غوښتل

پښتو

فاتن صبري

2021

# د هغه څه نه چې مالوستلي او ښه راته ښکاره شوي:

«په هغه وخت کې چې نابولي د کارلينيا Karlinia هنرمند نمايشونو لړزوله، په دغه ښارکې يو سړی يو مشهور ډاکټر ته ورغی چې د ژور خفگان (ذهني پرېشانۍ) لپاره ترې د دوايي غوښتنه وکړي، نو ډاکټر ورته د تسليت او ارامۍ سپارښتنه وکړه او د کارلينيا ننداړو ته د تللو توصيه يې ورته وکړه، نو هغه مريض ورته په جواب کې ووېل: زه کارلينيا يم»[١].

# اولیکوال خپلې وینا ته داسې دوام ورکړ:

«هغه مومن چې له زړه نه یې ایمان راوړی وي او یو ملحد هیڅکله هم د ذهني ډاکټر کتنځای ته نه ورځي، یوازې او یوازې پلټونکي او شک کوونکي خلک ورځي.

مومنان پلټنه کوي او راحت مومي، ملحدان پلټنه هم نه کوي او راحت هم نشي موندلی، او دریم قسم خلک هغه دي چې پلټنه کوي خو تر اوسه یې راحت نه دی موندلی، پرته له الله تعالی نه چې (پیداکوونکی دی ژوند یو میخانیک سیستم ته ورگرځي او بې معنا کیږي.

که ته دا ووایې چې زه مترو بس ته وختي تللی وم او بیا په مترو بس کې سپور شوم، بیا پوهنتون ته ورسیدم او

خپلې لیکچرې مې ورکړی او بیرته خپل کور ته راوګرځیدلم، دا وینا د دې وړ نه ده چې دا دی یوه لنډه کیسه وي، یا دی د چا نه یو نقل وي، ځکه چې دا د خیر او شر نه خالي ده، او د تاریخ په اوږدو کې د چا نه داسې یو نقل نشته چې هغه دې له خیر او شر دواړو نه خالي وي، ځکه چې دا دواړه د انسان د شتون او د هغه د مکلفیت راز دی».

دا دنده چې لېکوال یې په اړه وینا کوي د انساني بشریت په داخل کې د هغه ژور شعور او احساس نمونه ده  چې دا انسان د سم کار کولو ته هڅوي او د بدو نه یې مخنیوی کوي، او په دې توګه حساب او سزا هم ورکوي.

# د پلټنې سفر:

ډیری خلک دا گمان کوي چې د هر شي چې څه معنی نه وي هغه به اصلي وي، او په دې توگه زمونږ سره پوره ازادي ده چې مونږ د ځان لپاره یوه معنا جوړه کړو د دې لپاره چې مونږ یوه خوشحاله زنده گي ولرو.

بېشکه زمونږ د پیدایښت د هدف نه انکار کول په حقیقت کې خپل ځان ته دوکه ورکول دي، او گویا کې مونږخپلو ځانونو ته داسې وایو: «**راځئ فرض کړو چې زمونږ لپاره دي په دې ژوند کې یو هدف وي**».

گویا کې زمونږ حال د هغو ماشومانو په څېر دی چې له ځانه د ټوکو ډاکټران او نرسان یا مور او پلاړ جوړوي. مونږ هېڅکله نېکبختي نشو حاصلولی مگر کله چې مونږ په ژوند کې خپل هدف نه وي پېژندلی.

که چېرته یو انسان د خپلو ارادو پر خلاف په یو په زړه پورې رېل کې کینول شي، او خپل ځان په لومړۍ درجه کې بیاومومي، دا یوه اعلی او هوسا، او د مزو نه ډکه تجربه ده. آیا دا انسان به پدې سفر کې خوشحاله وي پغیر له دې چې د هغو پوښتنو جوابونه ورته حاصل شي کوم چې د دې په ذهن کې اوړي راوړي لکه:

**زه دې رېل ته څنګه راوختلم؟ لدې سفر څخه موخه څه ده؟ کوم ځای ته به ځي؟ کله چې دا پوښتنې پرته له جوابونو پاتي شي، نو دی به څنګه نېکبخته او خوشحاله وي؟**

تر دی چې که د دې ټولو شیانو څخه استفاده هم وکړي کوم چې د دې د واک لاندې دي، نو بیا هم هېڅکله په حقیقي معنی سره خوشحالي او نېکبختي

نشي حاصلولی، نو ایا خوندور خواړه د دې نه په دې سفر کې دا پوښتنې هیرولی شي؟

بېشکه دا قسم نېکبختي او خوشحالي خامخا لنډ مهالې او جعلي وي، تر هغه پورې دا خوشحالي نشي حاصلولی تر څو چې د دې مهمو پوښتنو په ځوابونو باندې ځان ناګاره او بې غرضه نه کړي، دا د شرابو له امله رامینځته شوې د دروغجنې خوښۍ په شان ده چې ښښتن یې په دې سره هلاکت ته رسیږي.

او په دې توګه انسان هېڅکله حقیقي خوشحالي نشي حاصلولی مګر کله چې د دې اساسي پوښتنو ځوابونه ومومي.

انګريز مفکر جوهن لوک وايي:

**«که چېرته د انسان ټول امېدونه په دې دنيا پورې تړلي وی، او که چېرته مونږ يوازې او يوازې په دې دنيا کې د زندګۍ نه خوندونه اخلو او بس نو دا د عقل او منطق نه لرې خبره نده چې مونږ دې د خوشحالۍ لټون وکړو اګر که د پلرونو او بچو په قيمت هم وي».**

## د شته والي او نشتوالي ترمنځ:

ډېری هغه خلک چې د دې دنیا له پیداکوونکي څخه انکار کوي په دې خبره یقین لري چې رښا د وخت نه بهر ده، او دا یې نده قبول کړې چې پیداکوونکی ذات د وخت او ځای د قانون لاندې نشي راتللی، په دې معنی چې پیداکوونکی ذات د هر څه نه مخکې و، او د ټولو شیانو نه وروسته به پاتې وي، او بېشکه هیڅ مخلوق هغه لوی ذات لره په خپله احاطه کې نشي راګیرولی.

ډېری له دوی نه په دې خبره باور لري چې واړه واړه یوځای شوې اجزاوې چې سره کله د یو بل نه جدا کېږي بیا هم په عین وخت کې د یو بل سره یوځای کیدای شي، خو لېکن دا خبره نشي منلی چې

پیداکونکی ذات په خپل علم سره د خپلو بنده گانو سره دی، هر ځای ته چې دوی لاړ شي. او په دې خبره هم باور لري چې د دې عقل شته پرته له دې چې دا یې ویني، خو په پیداکوونکي ذات باندې ایمان نه لري پغیر له دې چې دا هم ویني.

ډېرو د دوی نه په جنت او دوزخ باندې ایمان لرل رد کړي، خو بل طرف ته د داسې کائناتو په شتون باور لري چې لیدلي یې نه دي. مادي پوهې دی خبر کړی چې باید په ځېنو داسې شیانو باور او یقین ولري چې هغه له سره شتون هم نلري لکه د شگو گل، په دې ایمان لري او باور پرې کوي، خو د مرگ په وخت کې انسان ته فیزیک او کیمیا کومه گټه نشي رسولی، ځکه چې هغوی ورسره د نشت وعدې کړي.

دا په الله تعالی او د هغه په کتاب د باور کوونکو او د هغه د وجود نه د انکار کوونکو ترمنځ توپیر دی، ملحد (بې دینه) ته مومن یو پس پاتي انسان ښکاري ځکه چې هغه په داسې یو شی باور کړی چې نه یې دی لیدلی، سره له دی نه چې مسلمان په هغه څه باور کوي چې د هغه مرتبه او مقام اوچتوي، او بل طرف ته ملحد (بې دینه) د فیزیک او د کیمیا د کتابونو درناوي کوي کوم چې د دې مقام نور هم ټیټوي.

# د پروردګار شتون:

د دې کايناتو لپاره د يو پيداکوونکي په شتون باندې ايمان په دې حقيقت باندې ولاړ دی چې شيان پرته له سبب څخه نه څرګندېږي، او نه هم د کايناتو پيداکېدل يو ناڅاپي ډول کېدی شي، ځکه چې ناڅاپي ډول پيداکېدل اساسي سبب نه دی، بلکې دا يوه دويمه نتيجه ده چې په نورو عواملو پورې تړاو لري لکه **(وخت، ځای، ماده او د ځواک شتون)** د دې لپاره چې د دې شيانو څخه په ناڅاپي ډول يو څه شي جوړ شي.
نو (د ناڅاپي ډول) کلمې استعمالول د هيڅ شي لپاره تشريح او تفسير نشي کېدلی، ځکه چې دا پخپله هيڅ شی نه دی.

# د حقیقت درک کول (معلومول):

په تجربوي مادي پوهې باندې زموږ د بشپړ باور ساتلو ستونزه دا ده چې دا پوهه یو بدلیدونکی بنسټ دی.

هره ورځ داسې نوې اختراع ګانې کیږي چې پخوانۍ نظریې ورسره له منځه وړي.

ځینې هغه څه چې مونږ یې پوهه بولو لا هم نظرې دي. ولو که مونږ دا فرض کړو چې ټول علمونه ثابت او ځیرک دي، خو بیا هم زمونږ سره ستونزه شته.

په اوسني وخت کې په تجربه ولاړ علم موندونکي ته ټول ویاړ ورکوي او اصل جوړوونکی له پامه غورځوي.

د مثال په توګه - فرض کړئ چې یو څوک یوې کوټې ته ننوځي او یوه ښکلې نقاشي ووميي چې په ډیر دقت

سره رسم شوې وي، او په داسې ترتیب او خاېست سره چې د منلو وړ نه وي، او بیا د باندې راووځي ترڅو خلکو ته د هغې په اړه ووايي.

هرڅوک د هغه سړي څخه دومره متاثره شي چې دا نقاشي يې کشف کړې چې تر ټولو اړينه پوښتنه هیره کړې چې : «**دا نقشه چا رسم کړې؟**».

**دا هغه څه دي چې انسانان يې کوي**؛ دوی د طبیعت او فضا د قوانينو ساينسي موندنو څخه دومره اغېزمن شوي چې دوی د هغه چا حیرانوونکی پیداېښت هیر کړی چې د کايناتو قانون، انرژي، ماده او نور يې رامينځته کړي. ټول هغه څه چې ساينس پوهان يې کوي يوازې د قوانينو کشف کول دي. دوی دا قوانين نه دي جوړ کړي.

بلکې دا د خالق ذات لخوا رامینځته شوی.

انسان داسې نشي کولی چې د یو کتاب په پېژندلو سره د دې کتاب لیکوال هېر کړي، دوی بدیل نه دي. ساینس او نني علم د کایناتو قوانین کشف کړي خو دوی دا قوانین جوړ کړي نه دي، بلکې خالق ذات دا جوړ کړي.

داسې مؤمنان شته چې په فزیک او کیمیا کې لوړې درجې لري، خو په دې پوهېږي چې د دې کاېناتي قوانینو تر شا یو لوی خالق دی، نو هغه مادي علم چې ماده پوهان پرې باور لري داسې قوانین یې کشف کړي چې الله تعالی جوړ کړي، او ساینس دا قوانین نه دي جوړ کړي.

بېشکه ساینس پوهانو داسې څه نه دي موندلي چې دوی یې مطالعه کړي پرته له هغه قوانینو څخه چې الله تعالی پیداکړي.

په داسې حال کې چې ایمان مومن ته په دنیا او اخرت کې گټه رسوي.

بېشکه کله چې یو څوک سخت زکام او تبه ولري کیدی شي د څښلو لپاره یو گیلاس اوبه هم ترلاسه نشي کړلی، نو څنگه کولی شي چې د خپل خالق سره د خپلې اړیکي څخه بې پروا شي؟

**«ویلیم جیمز»** وایي: **«د دریابونو گډې وډې او ډېرې څپې هیڅکله د ژورو ځایونو سکون نه گډوډوي، نه یې امنیت گډوډوي، او همدارنگه هغه څوک چې په الله تعالی ژور باور لري باید د لنډمهاله سطحي**

بدلونونو سره د هغه ارامتیا ګډه وډه نه کړي.، یو ریښتینی دیني سړی د اضطراب مخه نیسي ، تل خپله هوښیارتیا کاروي، تل د هغو بدلونونو مقابلې ته تیار وي چې کېدای شي په ده باندې راشي».

# دين د څه لپاره؟

د لاهوتي علم (علم اللاهوت: هغه علم دی چې د الله د وجود او د هغه د ذات او د صفاتو څخه بحث کوي).

استاذ هانز شفارتز (Hans Schwarz) وايي:

"د ساينس د اهميت سره سره، دا کېدلی شي چې د ويجاړولو لپاره هم وکارول شي لکه څنګه چې د بيا رغونې لپاره کارول کيدی شي، او دلته د عقيدې ترټولو مهم رول راځي، ځکه چې عملي تجربه نشي کولی چې دا ټول جوابونه پيداکړي."

او وايې:

"عقيده او پوهه يو بل ته اړتيا لري، او ساينس پوهان بايد دا ومني چې دوی ځينې وختونه ايمان کاروي

**ترڅو د طبیعت د اړخونو ترمنځ په هغو ژورو اړیکو پوه شي چې دوی یې ګوري."**

او شوارز په دې باور دی چې ساینس پوهان هغه حقیقتونه او ځوابونه نه لري چې دوی یې ادعا کوي، او په هغو پوښتنو کې چې ساینس پوهان ورسره هر ورځ مخامخ کیږي د دې خبرې غټ ثبوت دی، په ځانګړې توګه هغه ساینس پوهان چې د ژوند د اصل په لټه کې دي، کله چې دوی یوې پایلې ته ورسیږي. یوه نوې موندنه په راتلونکی ورځ کې د دې سره مخالفت کوي.

زموږ د ژوند د سرچینې او د هغې د معنی په اړه هغه پوښتنې چې مادي ساینس نشي کولی ځواب ورکړي، د ځواب لپاره یې میتافزیک یا د طبیعت تر شا علم ته رول ورکړی، د هیروشیما حادثه او نور ناورینونه چې د

ساينسي اختراعاتو له امله رامينځته شوي، د دې په وجه ساينس خپل معصوميت له لاسه ورکړی.

فيلسوف کارل جاسپرس او نورو د ساينسي ماديالیزم علم په افسانوي (خيالي) نوم ياد کړی.

او موږ له دې څخه دې نتيجې ته رسيږو چې که موږ د استدلال لپاره ومنو چې ساينس دې پوښتنې ته ځواب ورکړی: **کائنات څنگه رامينځته شوي؟ دا ممکنه نه ده چې د ژوند او اخلاقو د اصل او هدف په اړه پوښتنو ته ځواب ووايو سره له دې چې ساينسي پرمختگ هم وساتو، پرته له دې چې د دين او ساينس ترمنځ توافق او يووالی پيداکړو.**

د مادي علومو په مرسته انسان کولای شي توغندی جوړ کړي، خو په دې ساينس سره نه شي کولای چې د

نقاشۍ د ښکلا په اړه قضاوت وکړي د بېلګې په توګه، د شیانو د ارزښت اندازه نشي کولای او نه د ښو او بدو په اړه موږ ته معلومات راکولای شي. د مادي ساینس په مرسته موږ پوهېږو چې ګولۍ وژل کوي، خو پدې نه پوهېږو چې د نورو د وژلو لپاره کارول یې غلط دي.

د فیزیک د علم مشهور عالم **البرت آنشتاین** وایي:

**"ساینس د اخلاقو سرچینه نه شي کیدی، په دې کې شک نشته چې د ساینس لپاره اخلاقي بنسټونه شتون لري، مګر موږ د اخلاقو لپاره د ساینسي بنسټونو په اړه خبرې نشو کولی. د ساینس قوانینو او مساواتو ته د اخلاقو د تابع کولو ټولې هڅې ناکامې شوې او ناکامې به وي."**

او مشهور جرمنی فیلسوف **ایمانویل کانت** وايي:

**"د پروردگار د شتون اخلاقي ثبوت د عدالت د غوښتنو سره سم رامینځته شوی، ځکه چې ښه سړي ته باید انعام ورکړل شي، او بد سړی باید مجازات شي ، او دا نه پیښیږي مگر د یوې لوړې سرچینې په شتون کې چې د هر انسان سره د هغه په ټولو کړو وړو حساب وکړي، لکه څرنگه چې دلیل د هغه څه پر بنسټ ولاړ دی چې د فضیلت او خوښۍ د یوځای کولو امکان ته اړتیا لري، ځکه چې دا ممکنه نه ده چې دوی یوځای شي مگر د هغه چا په شتون کې چې هغه د کایناتو نه اوچت دی، او هغه په هر څه پوهه دی او په هر شي قدرت لرونکی دی، او دا عالي او موجوده سرچینه د طبیعت څخه پورته د پروردگار استازیتوب کوي.**

# له بندګۍ څخه ازادي:

خامخا که مونږ د خالق عبادت ونه کړو، موږ به داسې حالت ته ورسیږو چې د نورو **"باطلو خدایانو"** عبادت به کوو. زړه؛ یا د دنیا له یوې معاملې سره تړاو لري چې د لاسته راوړلو په لټه کې یې وي او په ترلاسه کولو پسې یې منډې وهي، او یا هم د هغه له خالق او د وجود له اصل سره تړاو لري، او له همدې امله زموږ غوښتنې او خواهشات پرته زمونږ له پوهېدو مونږ غلامان کوي. په داسې حال کې چې زموږ د زړونو تړل د الله تعالی او د اخرت سره، موږ د نورو د غلامۍ له کړۍ څخه راوباسيء، او رب العالمین زموږ خالق دی او هغه ډیر مستحق دی چې موږ ورته وروګرځو او له هغه څخه مرسته وغواړو.

ډيرى خلک شهرت او فيشن ته متوجه کېږي.

سربيره پردې اعلانونه او ټولنيزې رسنۍ د خلکو پام ډير جذبوي، او د نيمګړو مفکورو په خپرولو کې ډير لوی رول لري، چې په ورو ورو شيانو پاملرنې ته خلک رابولي او لومړيتوبونه ترې ګډوډوي، او دې ته زمونږ په کړاوونو کې ونډه ورکړل شوې، او مونږ ګډوډ او د بدبختۍ ژوند ته رسوي.

همدارنګه، ځيني ټولنيز معيارونه او نور کورني فشارونه، چې کيدای شي موږ ميراثي دودونو او مفکورو ته اړ کړي، موږ له هغه څه څخه لرې کوي چې په دې ژوند کې زمونږ څخه غوښتل شوي او زموږ د پرودګار په وړاندې زموږ دنده ده.

# مکلفیت او مسؤولیت : دندې او سپارښتنې

د کايناتو پر خالق ايمان يوه ژمنتيا او مسؤوليت دی، ايمان ضمير ويښوي، او مؤمن ته په هر کوچني او لوی شي کې د ځان سره د حساب کولو تېزي ورکوي، مؤمن د خپل ځان، کورنۍ، ګاونډي او آن د مسافر په وړاندې هم مسؤول دی، مومن سببونه لټوي او په الله تعالی توکل او يقين کوي، زه فکر نه کوم چې دا دې په ترياکو د روږدو کسانو ځانګړتياوې وي کوم چې نن ورځ پرې مومنان بدناموي.

## د خلکو اصلي ترياک الحاد دی نه عقيده.

ځکه چې ملحد خپل پيروان ماديت ته بولي، د دين په ردولو او د مسؤليتونو او وظيفو په پرېښودلو سره د خپل خالق سره د دوی اړيکې لرې کوي، او دوی دې

ته هڅوي چې د هغې شیبې څخه خوند واخلي چې دوی پکې ژوند کوي پرته له دې چې د هغې پایلې په نظر کې ونیسي، نو دوی د د نیوي سزا څخه د خوندیتوب په حالت کې هغه څه کوي چې دوی یې خوښوي، په دې عقیده چې هیڅ الهي څارونکی یا حساب کوونکی نشته، او هیڅ بېرته راژوندې کېدل (قیامت) یا حساب شتون نلري. ایا دا په حقیقت کې په نشیي توکو د روږدي کسانو ځانګړتیاوې او صفتونه نه دي؟!

# د نفس لپاره لوړ مقام:

## د هغه څه نه چې مالوستلي او خوښ شوي مې دي:

"کله چې یو څوک جرم وکړي نو د تورن کس وکیل هڅه کوي چې د تورن کس جرم غیر قصدي ثابت کړي، که څه هم جرم د مادي لید څخه واقع شوی او مجرم اعتراف هم کړی، مګر قانون د جرم پر مهال د ارادې او نیت موندلو او د انسان د حالت د پېژندلو لپاره مداخله کوي.

دلته موږ روح (نفس) د مادي حقیقت څخه په لوړ مقام کې ځای په ځای کوو.

په حقیقت کې موږ د هغه څه په اړه قضاوت نه کوو چې په نړۍ کې پېښ شوي بلکې د هغه څه باره کې قضاوت کوو چې په نفس کې پېښ شوي.

دا د انسان او نړۍ تر منځ لومړنی تناقض منعکسوي، باید اخلاق داسې ارزښت ولري چې د تجریدي مادي معیارونو له مخې نه اندازه کېږي او د طبیعي قوانینو تابع نه وي.

اخلاقي سلوک، قرباني، لوړ مثالونه، د دنیا نه بې رغبتي، خواهشات پرېښودل، په ځان بل غوره کول دا اصلي اخلاق یا بې معنی دي او یا د پرودګار په شتون کې معنی لري."[1]

[1] د شفاء لما فی الصدور په نامه کتاب. د دکتور هیثم طلعت.

# په هغه ورځ چې مال او بچي به چا ته فایده نشي رسولی:

هغه څه چې موږ د کورونا په ناورین کې ولیدل د دومره مړو نه چې د هغوی په اړه هېڅوک نه پوهېږي، او د زړو خلکو کورونه (پالن ځایونه) د بې وزلو جسدونو څخه ډک شوي، چې د دوی شاوخوا ټول خلک د دوی څخه بېزاره شوي، او هغه څوک چې په لارو کې مړه شوي هیڅوک یې په اړه نه پوهیږي، او څوک چې مالدار دي د درملنې په ا نتظار دي، او دوی څنګه داسې حالت ته ورسېدل چې د ځوان په خاطر بوډا قرباني کوي، او ناروغان د روغتون په بسترونو باندې د یو بل نه مخکې کېږي، ګویا کې چې دا حالت

د قیامت د ورځې د صحنې په څېر یوه صحنه وړاندې کوي.

دکرونا بحران د خلکو له زړونو څخه ډیری هغه سمبولونه لرې کړل چې دوی ورپورې خپل خیالونه تړلي وو، او د دوی دروغجن معبودان چې دوی به یې پرته له الله تعالی نه احترام کاوه په یو بل پسې ټوټه ټوټه شول، نو چا چې به د مال بندګي کوله هغوی ته مال او دولت هیڅ فایده ونه رسوله، او چا به چې دا ګمان کاوه چې شاید دا به په مادي علم باندې بچ شي هېڅ فایده یې ورته ونه رسوله، او چاچې به په تېږو او بتانو سره ځان نږدې کاوه اوس ورته د کورونا د لګېدلو د ویرې نه نږدې کېږي، او مونږ د نصراني مولایانو څخه اورېدلي چې خپل پیروان یې نېغ په نېغه د الله تعالی

طرف ته رابللي او هغوی ته د ورتللو نه يې منع کړي، او د دې کلمې (لا اله الا الله) لمر او شان په ټوله نړۍ کې وځلېده.

بې له شکه حالات انسان دې ته اړ باسي چې الله تعالی ته وروګرځي او هغه ته رجوع وکړي او له هغه څخه مرسته او مدد وغواړي، او د دې حديث الفاظ په خپلو ښکلو معناګانو کې څرګندېږي:

کله چې څه غواړې نو د الله تعالی څخه يې وغواړه، او کله چې مدد غواړې نو د الله تعالی څخه يې وغواړه. ترمذي روايت کړی.

او تل په خپلو ليکنو کې هغه خبرې يادوم چې يو هسپانوي سپينږيري راته ويلي: موږ په لويديځ کې نه

د الله تعالی عبادت کوو او نه د مسیح عبادت کوو، موږ د ښځو او پیسو عبادت کوو.

که څه هم هغه دا د ټوکو په توګه وويل خو د هغه په دې جمله کې ډیر حقیقت پروت دی، او د هغه سړي وینا ما ته اوس رایادېږي پداسې حال کې چې په اروپا کې ټول خلک دا وینا کوي: یا الله بس زما ځان وژغوره.

په دې ژوند کې موږ پرته له دې بله چاره نه لرو چې د خالق بلنه ومنو چې په هغه باندې ایمان ولرو او هغه ته تسلیم شو او مونږ سره بله لار نشته، یا شتون دی یا نه شتون، د دې لپاره چې د دنیا او اخرت خیر تر لاسه کړو، او یا دنیا غوره کړو نو هلاک به مو کړي، او برخلیک به مو جهنم ته وي.

په دې لنډیز کې ما وغوښتل چې د کايناتو د خالق د شتون لپاره د خالق له ویناوو، د کايناتو له قوانینو څخه چې د خالق لخوا رامینځته شوي، او د کايناتو د هغو موجوداتو څخه چې خالق په نا اشنا ډول پیدا کړي دليلونه وړاندې کړم.

او د ځینو هغو علماوو ویناوې وړاندې کړم چې د خالق په وجود باور لري، سربېره پر دې د هغو کسانو ویناوې چې د خالق د وجود څخه انکار کوي، او ویناوي يې د الله تعالی د شتون حقیقت تاییدوي.

دا کتاب د دې لپاره هم دی چې ثابت کړي چې د خالق نه د انکار کولو نظریه د عقل، فطرت او عصري علم (ساینس) سره په ټکر کې ده؛ نه ایمان لکه څرنګه چې ځینې خلک دا باور لري.

او له لوی الله جل جلاله څخه غواړم چې دا کتاب له ما څخه قبول کړي او هغه چا ته یې د لارښوونې سرچینه او د حل لاره وگرځوي څوک چې د خالق له شتون څخه انکار کوي او د لارښوونې په لټه کې دي، ځکه چې هغه په ملحد (بې دینه) کېدلو سره حل لارې ته د رسېدو په لار کې د خپلې ناکامۍ اعلان کړی.

که ساینس پوه مؤمن وي، نو بې له شکه به خالق وايي، خو ملحد ساینس پوه به وايي: یو تکړه انجنیر، یا هوښیارې باکتریا، یا چانس (ناڅاپي ډول)، یا د ساینس پوهانو یوې ډلې یا د بلې سیارې مخلوقاتو تجربه کړې چې د دې لامل شوې چې کاینات دې رامنځ ته شي!

نو الله تعالی جواب ورکوي:

**الله تعالی د ټولو مخلوقاتو پيداکوونکی دی، او هغه په هر شي باندې ساتونکی دی.**[2]

**نااشنا جوړوونکی د اسمانونو او ځمکې دی، څرنگه هغه لره زوی کېدلی شي حال دا چې د هغه مېرمن نشته، او هر شی يې پيدا کړی او هغه په هر څه باندې پوهه دی (۱۰۱) دغه الله تعالی ستاسو پالونکی دی، نشته لايق د بندگۍ په حقه سره مگر همدغه الله تعالی دی، پيداکوونکی د هر يو شي دی نو خاص د هغه بندگي وکړئ او هغه په هر څه باندې نگران دی.**[3]

---

[2] (الزمر سورت : ٦٢ آيت)

[3] (الأنعام سورت: ۱۰۲-۱۰۱ آيتونه)

او بېشکه مونږ پیداکړي آسمانونه او ځمکه او هغه څه چې د دې دواړو ترمنځ دي په اندازه د شپږو ورځو کې او مونږ ته هېڅ ستوماني نه ده رارسېدلې.[4]

الله (چې دی) نشته بل حقدار د بندګۍ په حقه سره مګر هم دی دی، همېشه ژوندی دی، د ټول عالم انتظام کوونکی دی، په ده باندې نه پرکالي راځي او نه خوب، خاص هم ده لره دي ټول هغه څه چې په آسمانونو او ځمکه کې دي، څوک دی هغه کس چې د ده په وړاندې به سفارش کوي مګر د ده په اجازې سره، پوهېږي په هر هغه څه چې د دوی په وړاندې دي او په هر هغه څه چې د دوی وروسته دي، او دوی (مخلوق) د هغه له علم نه هېڅ شی هم نشي راګېرولی، مګر هغه څه چې هغه (الله) يې وغواړي، پراخه ده کرسۍ د

[4] (سورت ق: ۳۸ ایت)

**الله(د دوو پښو ځای) د اسمانونو او ځمکې څخه او د دې دواړو ساتنه هغه (الله) نه ستړی کوي، او هم هغه ډېر اوچت دی، ډېر لوی دی.**[5]

(هُوَ الْأَوَّلُ وَالْآخِرُ وَالظَّاهِرُ وَالْبَاطِنُ ۖ وَهُوَ بِكُلِّ شَيْءٍ عَلِيمٌ)

**هم دغه (الله تعالی) اول دی (هیڅ شی له هغه څخه مخکې نه و) او آخر دی (له ده نه وروسته هېڅ شي نشته) او لوړ دی (په هر شي بره دی) او باطن دی (د ده په وړاندې هېڅ شی پټ نه دی)، او هغه په هر شي باندې ښه پوهه دی.**[6]

(...لَيْسَ كَمِثْلِهِ شَيْءٌ ۖ وَهُوَ السَّمِيعُ الْبَصِيرُ).

---

[5] (البقرة سورت: ۲۵۵ آیت)

[6] (الحدید سورت: ۳ آیت)

نشته د هغه په شان هیڅ شی، او هغه ښه اورېدونکی او ښه لیدونکی دی.[7]

نو د آسمان او ځمکې په رب مې قسم دی چې بېشکه دا (خبره چې الله موجود دی شریک نلري) یقېنا حق ده، په شان د هغې چې تاسو خبرې کوئ.[8]

پیغمبرانو ورته ویلي وو: ایا د الله تعالی په باره کې شک دی، چې د اسمانونو او ځمکې پیداکوونکی دی...؟[9]

خاص الله تعالی هغه ذات دی چې نشته دی حقدار د بندگۍ پرته له هغه نه، پوه دی په هر پټ او ښکاره باندې خاص هغه بې حده مهربان او همیشه رحم کوونکی دی(۲۲).

[7] (الشوری سورت: ۱۱ آیت)
[8] (الذاریات سورت: ۲۳ ایت)
[9] (ابراهیم سورت : ۱۰ آیت)

دغه الله -تعالى- هغه ذات دی چې نشته هیڅ حق معبود مگر هم دی دی، چې (حقیقي) بادشاه دی، ښه پاک دی، سلامتي ورکوونکی (او) امان ورکوونکی دی، نگهبان (محافظ) ښه غالب (او زورور)، ډېر عظمت والا، ډېرې لویي والا دی، الله پاک دی له هغو شیانو نه چې دوی یې ورسره شریکوي (۲۳) هم دغه الله تعالی پیداکوونکی، (له نشت نه وجود ته) راوېستونکی، صورت ورکوونکی دی، خاص هم ده لپاره تر ټولو ښکلي نومونه دي، د ده پاکي بیانوي هر هغه شي چې په آسمانونو او ځمکه کې دي، او هم دی ښه غالب، ډېر حکمت والا دی (۲۴)[10]

[10] (سورت الحشر: ۲۴-۲۲ ایتونه)

بېشکه د هغه کار کله چې د يو شي د کولو اراده وکړي ورته ووايي چې شه سمدس هغه وشي.[11]

او هم هغه غالب دی، د خپلو بنده گانو له پاسه دی، او پر تاسو باندې ساتونکي (ملايک) رالېږي، تر هغه پورې چې کله په تاسو کې يو کس ته مرگ راشي، (نو) زمونږ استازي يې وفات کړي او هغوی هېڅ تقصير (کمی) نه کوي.[12]

او تاسو (د سمې لارې) اراده نشئ کولی مگر دا چې الله رب العالمين يې اراده وکړي.[13]

هغه له اسمانه تر ځمکې پورې د نړۍ چارې اداره کوي (د قيامت د ورځې پورې) بيا به ده ته دغه (کار) په هغې

[11] (سورت يس : ۸۲ ايت)
[12] (الأنعام سورت: ٦١ آيت)
[13] (سورت التکوير: ۲۹)

ورځ کې خېژي چې د هغې اندازه زر کاله ده، له هغو (کلونو) نه چې تاسو يې شميرئ. [14]

او خاص الله تعالی لره دی د اسمانونو او ځمکې (علم) غيب او خاص هم ده ته بيرته گرځولی شي (د بنده گانو) کار ټول، نو ته د ده عبادت کوه اوپه ده توکل کوه او ستا رب له سره غافله نه دی له هغو کارونو نه چې تاسو يې کوئ. [15]

او خاص د الله تعالی لپاره دي هغه څه چې په اسمانونو کې دي او هغه څه چې په ځمکه کې دي او خاص د الله تعالی په طرف (ټول) کارونه ورگرځولی شي. [16]

---

[14] (سورت السجده: ۲۹ آيت)

[15] (د هود سورت: ۱۲۳ آيت)

[16] (ال عمران سورت : ۱۰۹ ايت)

او نشته هیڅ څیز مگر مونږ سره د هغه خزانې دي او مونږ هغه نه نازلوو مگر په معلومې اندازې سره. [17]

او خاص د الله تعالی لپاره د اسمانونو او ځمکې خزانې دي خو منافقان نه پوهېږي. [18]

او هم ستا رب ښه بې پروا، (او) رحمت والا دی، که چېرې هغه وغواړي نو تاسو به بوځي او له تاسو وروسته به هغه خلق ځای ناستي کړي چې يې غواړي، لکه څنگه چې يې تاسو د بل قوم له اولادې نه پيدا کړئ. [19]

ای خلکو! هم تاسو الله تعالی ته اړ یاست، او الله تعالی، هم دی ښه بې پروا، ښه ستاېل شوی دی. [20]

[17] (الحجر سورت :۲۱ آیت)
[18] (المنافقون سورت: ۷ آیت)
[19] (الأنعام سورت: ۱۳۳ آیت)
[20] (د فاطر سورت: ۱۵ آیت)

او څوک چې کافر شو، نو بېشکه الله تعالی د مخلوقاتو نه بیخي بې پروا دی. [21]

او خاص له هغه سره د غیبو چابیانې دي، یوازې هغه په دغو عالم دی او هغه عالم دی په هغه څه چې په وچه او سمندر کې دي، او هیڅ یوه پاڼه نه غورځیږي مګر هغه پرې عالم دی او د ځمکې په تیارو کې نه یوه دانه (پربوځي) او نه لوند څېز او نه وچ مګر (دا ټول) په څرګند کتاب (لوح محفوظ) کې دي. [22]

ته ووایه: ای الله! د بادشاهۍ مالکه! ته بادشاهي ورکوې هغه چا ته چې وغواړې او بادشاهي بېرته اخلي له هغه چا نه چې وغواړې، چا ته چې وغواړې عزت ورکوې او چا ته چې وغواړې ذلت ورکوې، هم ستا په

[21] (ال عمران سورت : ۹۷ آیت)
[22] (الأنعام سورت: ۵۹ آیت)

لاس کې خیر دی، بېشکه ته په هر شي باندې ښه قادر یې (٢٦)

ته شپه په ورځ کې ننباسې او ورځ په شپه کې ننباسې او ته ژوندی له مړي راوباسې او مړی له ژوندي راوباسې او چا ته چې وغواړې بې حسابه روزي ورکوې (٢٧).[23]

نا اشنا جوړونکی د اسمانونو او زمکې دی، او کله چې د کوم کار پریکړه وکړې، نو همدا خبره ده چې هغه ته وایي: «وشه» نو هغه وشي.[24]

آیا نه دي خبر کافران چې بېشکه آسمانونه او ځمکه سره دواړه یوځای نښتي وو نو بیا مونږ دواړه بېل کړل،

[23] (آل عمران سورت : ٢٧-٢٦ آیتونه)

[24] (البقرةسورت: ١١٧ آیت)

**او هر ژوندی شی مو د اوبو څخه پیداکړی دی، آیا دا خلک ایمان نه راوړي؟ [25]**

**ټولې د کمال صفتونه خاص د الله تعالی لپاره دي چې د اسمانونو او ځمکې پیداکوونکی دی، ملاېکو لره رسولان گرځوونکی دی، (داسې ملاېک) چې د وزرو والا دي، دوه دوه او درې درې او څلور څلور، هغه په پیداېښت کې زیاتوي چې څه وغواړي، بېشکه الله تعالی په هر شي باندې ښه قدرت لرونکی دی. [26]**

---

[25] (الانبیاء سورت: ۳۰ آیت)

[26] (فاطر سورت:۱ آیت )

# راتلونکي قرآني آيتونه لاندې موضوعات تاييدوي:

آسمانونه او ځمکه (کاينات) دا ټول يوه ټوټه وه، الله تعالی د هغې صفت داسې بيان کړی چې «**يو بل سره نښتي وو**» مطلب دا چې يو شی سره کلک نښتی وي.

**او اسمان مونږ هغه په قدرت سره جوړ کړی او بېشکه مونږ خامخا پراخوونکي يو.** [27]

**ته دوی ته ووايه: ايا په رښتيا تاسو خامخا کافران کېږئ په هغه ذات چې ځمکه يې په دوه ورځو کې پيدا کړه او تاسو د هغه لپاره شريکان جوړوئ (٩)**

**او دغه (الله تعالی) په دغې ځمکه کې د دې له پاسه غرونه کېښول او په هغې کې يې برکت واچاوه او په هغې کې يې د دې د (اوسېدونکو) روزي په اندازه کړه**

[27] (الذاريات سورت: ۴۷ آيت)

په څلورو ورځو کې، په داسې حال کې چې د تپوس کوونکو لپاره برابر دي (۱۰)

بیا یې د اسمان په طرف اراده وکړه، په داسې حال کې چې هغه یو لوګی و، نو هغه (الله تعالی) ده ته او ځمکې ته وویل: تاسو دواړه راشئ، په خپلې خوښې سره، یا په زور سره، دواړو وویل: مونږ په خوښې سره فرمان منوونکي راځو (۱۱)

نو په دوو ورځو کې یې اوه اسمانونه جوړ کړل او په هر اسمان کې یې د هغه مناسب کار وحې وکړه او د ټولو نږدې اسمان مو په ډیوو (ستورو) سره ښکلی کړ او (دغه مو وساته) په ښې ساتنې سره، دغه د ډیر غالب، ښه پوهه ذات اندازه کول دي (۱۱) [28]

[28] (فصلت سورت)

# دا ایتونه دا راتلونکې خبرې څرګندوي: اوله او دويمه ورځ: د ځمکې جوړښت.

**او په درېمه او څلورمه ورځ کې:** د بره طرف نه د غرونو راښکاره کېدل او د هغوی لوړوالی، او همدارنګه د ځمکې د اوسېدونکو لپاره د غلې (خوراک) اندازه کول (یعني د نباتاتو او ځارویو پیداکول)

په داسې حال کې چې قرآن تر ۱۴۰۰ کاله مخکې د اسمان د لوګي د اصل په اړه خبرې کړې وې، تر هغه وخته پورې د ستورو ترمنځ ګرد او غبار نه وو کشف شوی تر څو چې په اوسني وخت کې آلمانیانو د دوړو کشف کوونکې اله جوړه کړه.

هر چې د ستورو ترمنځ د دوړو په اړه ده: نو ساینس پوهانو کشف کړې چې زمونږ دنیا د خاورو دنیا ده، او

اوسنی اسماني ګرد د اسمان د لوګي څخه پاتي یوه برخه ده.

تجربوي ساینس خبر ورکړی چې زموږ کهکشان د کایناتو په پورتنۍ نیمايي برخه کې موقعیت لري او د کړېدلو سره نور هم بره طرف ته حرکت وي، او موږ د کایناتو د پراخیدو په لور روان یو.

**دغه الله تعالی دی چې لمر یې تېز ځلېدونکی ګرځولی دی او سپوږمۍ یې روښانه او هغه یې منزلونه منزلونه مقرر کړه، د دې لپاره چې تاسو د کلونو شمېره او حساب معلوم کړئ، الله تعالی دا څېزونه نه دي پیدا کړي مګر په حقه سره، هغه ایتونه په تفصېل سره بیانوي، د هغو خلقو لپاره چې پوهېږي.** [29]

---

[29] (یونس سورت : ۵ ایت)

همدارنگه الله تعالی فرمایي:

إِنَّ فِي خَلْقِ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ وَاخْتِلَافِ اللَّيْلِ وَالنَّهَارِ وَالْفُلْكِ الَّتِي تَجْرِي فِي الْبَحْرِ بِمَا يَنْفَعُ النَّاسَ وَمَا أَنْزَلَ اللَّهُ مِنَ السَّمَاءِ مِنْ مَاءٍ فَأَحْيَا بِهِ الْأَرْضَ بَعْدَ مَوْتِهَا وَبَثَّ فِيهَا مِنْ كُلِّ دَابَّةٍ وَتَصْرِيفِ الرِّيَاحِ وَالسَّحَابِ الْمُسَخَّرِ بَيْنَ السَّمَاءِ وَالْأَرْضِ لَآيَاتٍ لِقَوْمٍ يَعْقِلُونَ)

**بېشکه د آسمانونو او ځمکې په پیداکولو او د شپې او ورځې په بدلېدو کې، او په هغو بېړیو کې چې په سمندر کې یې هغه  څه روان کړي وي چې خلقو ته فایده رسوي، او په هغه څه کې چې الله تعالی له اسمانه (بره) نه راورولي دي، چې اوبه دي، نو په دې سره یې ځمکه د هغې له مړه کېدو (وچېدو) نه پس ژوندۍ کړه، او په دې کې یې هر قسمه خوځنده**

**(شیان) خواره کړل، او د بادونو په ګرځولو (راګرځولو) کې او په هغې وریځ کې چې د اسمان او ځمکې په مینځ کې تابع کړی شوې ده، خاماخا د هغه قوم لپاره نښې دي چې عقلمند وي.** [30]

**او ما پېریان او انسانان نه دي پیدا کړي مګر د دې لپاره چې زما بنده ګي وکړي.** [31]

همدارنګه الله تعالی فرمایلي:

**بېشکه مونږ ګرځولی هر هغه شی چې د ځمکې دپاسه دی ښایست د ځمکې، د دې لپاره چې مونږ دوی وازمایو چې په دوی کې کوم یو د عمل په لحاظ ډېر غوره دی.** [32]

---

[30] (البقره سورت: ۱٦۴ آیت)

[31] (الذاریات سورت : ٥٦ آیت)

[32] (الکهف سورت: ۷ آیت)

**... بېشکه الله تعالی د ټولو مخلوقاتو نه بې حاجته دی.** [33]

**یقینا په انسان باندې داسې وخت هم راغلی چې دی څه داسې د یادولو وړ شی نه و.** [34]

**او بېشکه مونږ انسان د خټې د خلاصې(بېلابېلو ځایونو څخه راټولې شوې) نه پیداکړی دی.** [35]

**هغه الله تعالی چې ښاېسته کړی یې دی هر هغه شی چې پیداکړی یې دی، او د انسان د پیدایښت پېل یې له خټې څخه کړی دی.** [36]

**(الله تعالی) ووېل: ای ابلېسه! ته هغه کس ته له سجدې کولو نه څه شي منع کړې چې ما پخپلو دواړو**

[33] (العنکبوت سورت : ٦ آیت)
[34] (الانسان سورت: ١ آیت)
[35] (المؤمنون سورت: ١٢ آیت)
[36] (السجده سورت: ٧ آیت)

لاسونو پیدا کړی دی؟ آیا تا لویي وکړه، او که یا ته له (پېل نه) د لوړو خلقو څخه یې؟ [37]

او کله چې مونږ ملایکو ته وویل: آدم ته سجده وکړئ، نو هغوی سجده وکړه لیکن ابلیس نه، هغه انکار وکړ، او تکبر یې وکړ، او هغه و له کافرانو څخه. [38]

بیا یې د هغه نسل د سپکو (حقیرو) اوبو د خلاصې نه پیدا کړ. [39]

بیا مونږ هغه، نطفه (دمني یو څاڅکی) وګرځوله په مضبوط قرار ځای(رحم) کې(۱۳).

بیا مونږ دغه نطفه د وینې ټوټه وګرځوله، ورپسې مونږ دغه د وینې ټوټه د ژولې شوې غوښې په څیر وړه بوټۍ

---

[37] (الصاد سورت : ۷۵ آیت)

[38] (البقره سورت: ۳۴ آیت)

[39] (السجدة سورت: ۸ آیت)

**وګرځوله، ورپسې مونږ دغه بوټۍ هډوکی وګرځوله، بیا مو هډوکو ته غوښه ورواغوستله، بیا مونږ هغه په بل تخلیق کې پیدا کړ، نو الله تعالی ډېر برکت والا دی چې تر ټولو ښه پیداکوونکی دی.** [40]

او (الله تعالی) هغه ذات دی چې له اوبو نه یې انسان پیدا کړی دی، بیا یې هغه د نسب او سخرګنۍ والا وګرځاوه او ستا رب ښه قادر دی.

(الفرقان سورت : ۵۴ آیت)

**او یقینا مونږ د ادم اولادې ته ډېر عزت ورکړی دی، او مونږ دوی په سورلیو باندې په وچه او سمندر کې سواره کړي دي، او مونږ دوی په خپل مخلوق کې په**

[40] (المؤمنون سورت : ۱۴-۱۳ آیتونه)

ډېرو زياتو باندې غوره کړي دي، په غوره کولو ډېرو سره. [41]

(دغه الله تعالی) نا اشنا پيداکوونکی د اسمانونو او ځمکې دی، تاسو لپاره يې ستاسو له جنسه نه جوړې پيداکړي دي، او د څارويو نه يې هم قسمونه پيداکړي دي، هغه تاسو په دې طرېقې سره خوروي، د هغه په مثل هېڅ شي هم نشته، او هم دغه الله تعالی ښه اورېدونکی ښه لېدونکی دی. [42]

او مونږ ووېل ای ادمه! اوسېږه ته او ستا بې بې په جنت کې، او دواړه د هغه له ميوو نه پرېمانه خوراک کوئ

---

[41] (الاسراء سورت : ۷۰ آيت)

[42] (الشوری سورت: ۱۱آيت )

**کوم ځای چې مو خوښه وي، او تاسو دواړه دې ونې ته مه نږدې کيږئ، ګنې تاسو به له ظالمانو نه شئ.** [43]

**او ته دوی ته ووايه: حق ستا د رب له جانبه دی، نو څوک چې (د ايمان) اراده وکړي نو هغه دې ايمان راوړي او څوک چې (د کفر) اراده وکړي نو هغه دې کافر شي ...** [44]

**او ادم ته يې ټول نومونه وروښودل(د هغه ضروري شيانو)، بيا يې هغه ملايکو ته وړاندې کړل، نو ويې ويل: ما د دوی په نومونو باندې خبر کړئ که چېرته تاسو رېښتوني ياست.** [45]

[43] (البقره سورت: ۳۵ آيت)
[44] (الکهف سورت: ۲۹ آيت)
[45] (البقره سورت: ۳۱ آيت)

**نو آدم له خپل رب نه څو کلمې زده کړې، نو د هغه توبه یې قبوله کړه، بېشکه هم هغه ښه توبه قبلوونکی، بې حده رحم کوونکی دی.** [46]

**او کله چې ستا رب ملایکو ته ووېل: بې شکه زه په ځمکه کې یو خلیفه پیدا کوونکی یم، هغوی ووېل: آیا ته په هغې کې داسې څوک پیدا کوې چې په هغې کې به ورانی کوي او وینې به تویوي؟ حال دا چې مونږ ستا له ستاېلو سره تسبیح وایو او ستا پاکوالی بیانوو، (الله تعالی) ووېل: یقېنا زه پوهېږم په هغه څه چې تاسې پرې نه پوهېږئ.** [47]

که څه هم دوی هیڅکله دا نه مني، د ملحدېنو پوهان خالق ته په نورو نومونو (مورنی فطرت، د کائناتو

[46] (البقره سورت: ۳۷ آیت)

[47] (البقره سورت : ۳۰ آیت)

قوانين، طبيعي ټاکنه "د ډاروين نظريه"، او نورو ...)
سره اشاره کوي.

په ناکامو هڅو سره د دين له منطق او د خالق په شتون
باندې د باور نه تېښته کوي.

**دغه (بتان) ندي مگر تش نومونه چې تاسو او ستاسو پلرونو دغه ايښي دي، الله تعالى په دغو هيڅ دليل ندى نازل کړى، دوى پيروي نه کوي مگر د تش گمان او د هغه شي چې نفسونه يې غواړي او يقينا دوى ته د خپل رب له جانبه هدايت(١) راغلى دى.** [48]

د هغه څه نه چې ما لوستلي او ښه راته ښکاره شوي.

نوى ډاروينېزم د ژونديو موجوداتو په هغو ځانگړتياوو
باور لري کوم بدلونونه چې په دې کې د جنين په وخت

[48] (د النجم سورت: ٢٣ آيت)

کې واقع کېږي، او د جنین په وخت کې تغیرات بل څه نه دي مګر په جنتېکي موادو کې (ګډوډي ده)!

نو مونږ باید دا ومنو چې د دغو پرلپسې خطاګانو (ګډوډیانو) په وجه دا نا اشنا او بې مثاله کاینات جوړ شوي! او دا داسې ده لکه څوک چې ووایي: چې یو ماشوم څو کلونه په کمپیوټر کې لوبې کولې، او د دې په کیبورډ کې د ګډوډو بټنو وهلو په نتیجه کې په ناڅاپي ډول یو غوره نظام رامنځ ته شو.

دی دومره لوی بدلون ته هسې د اتفاقیاتو وصف ورکول او یا د ړانده غرګی ویل دا معنی لري چې موږ:

د دې ټولو "مجهولاتو" سره سره، بیا هم ځینې په دې باور دي چې لوی پرمختګ یو سالمه ساینسي تیوري

ده! د مومنانو لپاره لوی پرمختګ د "تور بکس" سیستم دی.

نو پرمختګ معلوم دی او څرنګوالی یې نا معلوم دی، او د هغه د منونکو لپاره په هغه باندې ایمان واجب دی، او په اړه یې پوښتنه کول پرته له بحث او جنجال څخه یو علمي بدعت دی.

د کایناتو د قوانینو د سرچینې په پوهیدو کې نه لیوالتیا د سرچینې له شتون څخه د انکار لپاره د وسیلې په توګه اخیستل کیږي.

**بلکې دوی د هغه قرآن تکذیب وکړ چې دوی د هغه د علم احاطه نه وه کړې، او نه دی راغلی دوی ته تر اوسه پورې هغه بد انجام د نه منلو د قران، همدارنګه تکذیب**

**کړی وو هغو کسانو چې له دوی نه مخکې وو، نو ته وګوره د ظالمانو انجام څنګه و؟** [49]

دوی وايي: **تاسو مومنان د «خالېګاوو الله» قاعده جوړه کړې، يعنې: کله چې تاسو په ساېنس کې يو سرحد بیامومئ، نو تاسو د هغې د جوړولو نسبت الله تعالی ته کوئ.**

مونږ دوی ته وايو: **د کايناتو د قوانينو د سرچينې درک کولو نه ليوالتيا يا وړتيا د يوې ذرېعې په توګه نېول چې د سرچينې له شتون څخه انکار کوي، په حقيقت کې په ادراک او منطق کې ترټولو لويه تشه ده، "د خالېګاوو الحاد" دی.**

[49] (د یونس سورت: ۳۹ ایت)

هېڅا دا دعوه نه ده کړې چې دی خالق دی، پرته له پریکړې کولو او پېدابښت والا شخه، چې یوازې هغه دا حقیقت په ډاگه کړي، کله چې هغه انسانیت ته خپل پیغمبران ولېږل.

کله چې یوه کځوړه په عام ځای کې وموندل شي او هیڅوک نه راځي چې دا ادعا وکړي چې هغه د کځوړې مالک دی پرته له یو کس شخه چې د کځوړې ځانگړتیاوې او ورپکې شیان وښایې، دا کځوړه د هغه حق دی تر څو چې د دې برعکس یو دعوا کوونکی ښکاره شي، او دا د بشري قوانېنو مطابق دی.

**ته (دې مشرکانو ته) ووایه: تاسو هغه معبودان وبولئ چې تاسو هغه له الله تعالی نه غیر معبودان گڼلي دي، دوی د یوې ذرې اندازه واک نه لري په اسمانونو کې او**

نه په ځمکه کې او د دوی لپاره په دغو دواړو کې هېڅ برخه (شرکت) نشته، او نشته دغه الله تعالی ته له دوی نه هېڅ مرستندوی. [50]

که چېرې په دغو (ځمکه او اسمان) کې له الله تعالی نه پرته نور معبودان وی (نو) دواړه به خامخا وران شوي وو، نو الله د عرش مالک؛ پاک دی له هغو خبرو چې دوی یې بیانوي. [51]

او ما پېریان او انسانان نه دي پیدا کړي مگر د دې لپاره چې دوی زما عبادت وکړي (٥٦)

زه له دوی نه هېڅ رزق نه غواړم(د دوی د پاره: چې ځانته دې روزي پیدا کړي) او نه دا غواړم چې دوی ما ته خوراک راکړي (٥٧)

[50] (د سبا سورت: ۲۲ ایت)

[51] (د الانبیاء سورت: ۲۲ آیت)

**بېشکه هم دغه الله تعالی ښه روزي ورکوونکی، قوت والا او ډېر مضبوط دی (۵۸) (الذاریات سورت: ۵٦-۵۸)**

**هغه الله تعالی چې اوه آسمانونه یې طبقې طبقې (لاندې باندې) پیداکړي دي، ته به د رحمان په پیداکولو کې هېڅ خلل او فرق ونه وینې، بیا بیا وګوره، آیا ته کوم څېرې والی (او چاود) وینې؟** [52]

**بېشکه مونږ هر یو شی په اندازې سره پیداکړی.** [53]

په کایناتو کې د آفتونو او ناروغیو شتون د محکموالي شتون نه نفی کوي، که مونږ چېرته په اصل کې د کایناتو لپاره بشپړتیا نه وی موندلی نو مونږ به داسې شیان نه وو موندلي چې بشپړ نه وو.

[52] (د الملک سورت: ۳ ایت)

[53] (د القمر سورت: ۴۹ ایت)

بېشکه د کايناتو په جوړښت کې د عيب د شتون دعوا نه ده مگر په شيانو کې د حکمت په درک کولو کې کمی، نو د کايناتو لپاره د يو خالق په شتون باور کوونکی په دې باندې باور لري چې بېشکه په کايناتو کې هېڅ شی هم پرته له هدف څخه نه واقع کېږي، نو ځکه دنيوي ژوند د تلپاتې ژوند لپاره پيل دی کوم چې د انسان د مرگ څخه وروسته پيلېږي په دوباره راوژندې کېدلو او حساب کتاب سره او بيا په بدلې ورکولو سره، او په دې دنيا کې زمونږ شتون د يو خاص او اوچت هدف لپاره دی چې هغه د الله تعالی پېژندل دي، او خاص د هغه بنده گي ده او مستقيما هغه ته په دعا او غوښتنې سره توجه کول دي، او د مصيبت په

وخت کې صبر کول دي او د پراخۍ او نعمتونو په وخت کې شکر وېستل دي.

او څاروي هغه يې پيداکړي دي، ستاسو لپاره په دوی کې د ګرمۍ اسباب او نورې ګټې دي ، او ځېني د دوی نه تاسې خورئ (٥) او ستاسو لپاره په دې کې ښايست دی کله چې يې بېرته ماښام کور ته راولئ او کله چې يې د ځر لپاره بوځئ (٦) او دوی ستاسو درانه بارونه پورته کوي هغه ښار ته چې تاسو هغه ته رسېدونکي نه وئ مګر د ځانونو په مشقت سره، بېشکه ستاسو رب يقېنا ډېر نرمي کوونکی، بې حده مهربان دی (٧) او اسونه قچر او خره يې (پيداکړي) د دې لپاره چې تاسې په دې باندې سواره شئ او د زينت لپاره، او

پیدا کوي هغه څه چې تاسو یې نه پېژنئ(په دې کې اشاره ده الات جدیدو ته). [54]

**بېشکه الله تعالی هغه ذات دی چې آسمانونه او زمکه یې پیدا کړي دي او له بره نه یې اوبه نازلې کړي دي، پس په هغو سره یې له مېوو نه ستاسو لپاره رزق راوېستلی دی او ستاسو لپاره یې بېړۍ مسخرې کړي دي، د دې لپاره چې هغه (بېړۍ) د هغه په حکم سره په سمندر کې روانې وي، او ستاسو لپاره یې نهرونه مسخر کړي دي.** [55]

**نو تاسو ما ته خبر راکړئ! هغه اوبه چې تاسو یې څښئ (٦٨) آیا تاسو دغه له سپینو وربځو نه نازلې کړي دي، یا هم دا مونږ یې نازلوونکي یو؟ (٦٩) که مونږ وغوارو**

[54] (د النحل سورت: ٨ آیت)

[55] (د ابراهیم سورت: ٣٢ آیت)

**دغه به تروې ترخې وګرځوو، نو تاسو ولې شکر نه وباسئ! [56]**

**آیا تا د خپل رب (قدرت) ته نه دي کتلي چې هغه سیوری څنګه غځولی دی او که هغه غوښتلی (نو) هغه به یې خامخا ولاړ (ساکن) ګرځولی و، بیا مونږ په هغه باندې لمر دلیل وګرځاوه. [57]**

**پاکي ده هغه ذات لره چې دغه ټولې جوړې یې پیداکړي دي، له هغو څیزونو نه چې ځمکه یې زرغونوي او د دوی له نفسونو نه او له هغو څیزونو نه چې دوی یې نه پیژني. [58]**

ځان جوړونه په یوګونې حجره لرونکو مخلوقاتو کې کیدای شي چې ومونډل شي، مګر د لومړۍ حجرې

---

[56] (د الواقعې سورت: ٦٨ - ٧٠)

[57] (د الفرقان سورت: ۴۵ ایت)

[58] (د یس سورت: ٣٦ ایت)

شتون فرض کړئ، او له همدې امله دا د ډېروالي یوه طریقه ده، او که موږ د استدلال لپاره ومنو چې یو ځان تولیدوونکی مخلوق وده کولی شي، دا کار په جوړو باندې نه پلي کیږي، ځکه چې د ژوندي موجوداتو جوړښت او پیدایښ د جوړو له وجې د هغه څه په اړه پوهې ته اړتیا لري چې هره یوه جوړه غواړي چې هغې ته په پوره زیرکتیا سره ارتقا وکړي د وسایلو جوړښت، د دوی د دندو او موقعیتونو او ډیری نورو توضیحاتو کې د توپیر له امله.

**آیا دوی بې له څه شي پیدا کړی شوي دي، یا هم دوی پخپله پیداکوونکي دي؟ (۳۵) ایا دوی اسمانونه او ځمکه پیداکړي دي؟ بلکې دوی یقین نه کوي (۳٦) ایا**

**له دوی سره ستا د رب خزانې دي، یا هم دوی واکداران دي.** [59]

دا فرضیه چې د کایناتو خالق شتون نلري د ډیرو طبیعي قوانینو سره مخالفت کوي کوم چې مونږ یې شاوخوا ګورو، د ساده مثال په توګه، که موږ ووایو چې د مصر اهرامونه د هېڅ شي څخه موندل شوي دا د دې احتمال د ردولو لپاره کافی دي.

ځان جوړونه یو منطقي او عملي ناشوني ده، په دې معنی چې یو څه شتون لري او په ورته وخت کې شتون نلري، او دا نظریه چې انسان خپل ځان پیدا کړی، پدې معنی چې هغه د هغه له شتون څخه مخکې هم شتون درلوده،او دا ناممکن دي.

[59] (د الطور سورت: ۳۵ - ۳۷)

**هر هغه څوک چې په دې ځمکه باندې دي، خامخا فاني کېدونکي دي.** [60]

دا قانون وايي چې کاينات اوس د تودوخې د مړينې په لور روان دي کله چې د ټولو سيارو تودوخه مساوي شي، کاينات لکه څنګه چې ساينس پوهان وايي، د ساده کېدو او جداکېدو په لور روان دي، او بيا د کايناتو فنا او هغه څه چې پکې شامل دي، په داسې حال کې چې الحاد وايي: کائنات د پيچلتيا او پرمختګ په لور روان دی. نو ځکه ساينس پوهان په دې نظر دي چې دا قانون د ډاروين نظريه له منځه وړي.

**آيا ستا رب بسه کافي ندی دا چې يقېنا هغه په هر شي باندې خبردار دی.** [61]

---

[60] (د الرحمن سورت: ٢٦ ايت)

[61] (د فصلت سورت: ٥٣ ايت)

دا اصل وايي چې موږ انسانان د بهرنۍ نړۍ په اړه نه پوهیږو پرته له هغه څه چې زموږ په ذهن کې د حسي ادراکونو( څخه دي، او ذهن د یو داسې عقل په شتون باندې ټینګار کوي چې ټول شیان راګیر کړي او په دوی باندې به شاهد وي، (مطلب یوه بهرنی ځواک چې د انسانانو څخه توپیر لري)

**ای خلقو! بېشکه مونږ تاسو له یوه سړي او له یوې ښځې پیداکړي یاست، او مونږ تاسو څانګې او قبیلې ګرځولي یې، د دې لپاره چې تاسو یو بل سره وپېژنئ، بېشکه د الله تعالی په نېز په تاسو کې ډېر عزتمن، ستاسو زیات پرهېزګار دی، بېشکه الله تعالی ښه پوه، ښه خبردار دی.** [62]

---

[62] (د الحجرات سورت: ۱۳ ایت)

او مونږ اسمان او ځمکه او هغه څه  چې د دواړو په مېنځ کې دي داسې نه دې پيداکړي، چې لوبې كوونكي يو (١٦) كه مونږ اراده كړې وى چې څه لوبه تماشه جوړه كړو نو يقېنا هغه به مو له خپلې خو انه جوړه كړې وى، كه مونږ دا كار كوونكي وو (١٧). بلكې مونږ په حق سره باطل ولو، نو دا د هغه دماغ راوباسي، نو ناڅاپه هغه ختمېدونکی وي، او تاسو ته د هغه څه په وجه هلاكت دى چې تاسو يې بيانوئ (١٨) او خاص د هغه لپاره دي هغه څوک چې په اسمانونو او ځمكه كې دي، او هغه څوک چې له هغه سره دي، هغوى د هغه له عبادت نه تكبر نه كوي او نه ستومانه كېږي (١٩) هغوى شپه او ورځ تسبيح وايي، نه څه وقفه كوي (٢٠). [63]

[63] (د الأنبياء سورت)

دا وينا چې د انسان ژوند يوه بريښنايي لوبه ده چې د واقعيت تقليد کوي يو منطقي ناممکن دی. د دې لپاره چې هغه کمپيوټر چې رياضياتي عمليې تر سره کوي واقعيت راته حکايت کړي، نو هغه کافي ساختماني ورتياوو ته اړتيا لري تر څو هغه پېښې رامېنځته کړي چې مونږ يې د سمولو چاپېريال کې ژوند کوو چې دا رامېنځته شوی (زمونږ چاپيريال دی).

مګر دا وموندل شوه چې يوازې د څو سوو الکترونونو لپاره د ځينې چلندونو انډول کولو لپاره اړين معلومات ذخيره کول د کايناتو د شتون په پرتله ډېرو اتومونو ته اړتيا لري! موږ نشو کولی کوانټم فزيک او د هغې پيچلي اصول د هرې پرمختللې ټيکنالوژۍ سره چې

موږ پرې پوهېږو جوړ کړو حتی په لوی کمپیوټر کې چې موږ یې تصور کولی شو.

د انسان عقل کمپیوټر نه دی، او تمییز یې د هغه په درک کولو پټ دی.

**ایا نو دوی په ځمکه کې ګرځېدلي نه دي، نو چې د دوی لپاره زړونه وي چې دوی په هغو سره پوهیدلی یا داسې غوږونه چې دوی په هغو سره اورېدلی، نو بېشکه خبره دا ده چې سترګې نه ړندېږي او لېکن هغه زړونه ړندېږي چې په سینو کې دي.** [64]

**او دغه الله تعالی هماغه ذات دی چې تاسو لپاره یې غوږونه او سترګې او زړونه پیداکړل، تاسو ډېر لږ شکر وباسئ.** [65]

---

[64] (د الحج سورت: ۴٦ ایت)

[65] (د المومنون سورت: ۷۸ ایت)

**دوی د دنیایي ژوند په ظاهري (سرسري شیانو) پوهېږي، په داسې حال کې چې دوی له اخرته هم دوی غافلان دي.** [66]

مشهور ملحد **سټیفن هوکېنز** ویلي چې د ژوند پای د عقل له تللو سره تړلی ده، لکه د کمپیوټر کله چې یې الات خراب شي له کار څخه ودرېږي، د بېرته راژوندي کولو نه د انکار لپاره بهانه لټوي.

**موږ ورته وایو:** آیا سالم عقل دا مني چې د مړي زړه ټکان کوي او سږي یې تنفس کوي؟ البته نه، ځکه دا هغه مړی دی چې په مړي کې ځای پر ځای شوی او له هغه روح پرته چې له هغه څخه راوتلی دی دا هیڅ ارزښت نه لري، له همدې امله موږ د یو ژوندي بدن په

---

[66] (د الروم سورت: ۷ ایت)

لته کې یو چې روح پکې وي، داسې چې د هغه زړه ټکان کوي او سږي یې تنفس کوي. حتی که ملحد په هغه روح باندې اعتراف هم نه کوي کوم چې هغه یې د هغه د وجود یا د خالق د مهربانۍ له منلو پرته په لته کې دی، دا کافي ده چې د ساینس پوهانو تجربې کوم چې د دماغ یا سر لیږد په برخه کې کار کوي په دې اقرار کوي.

**آیا نو تاسو گومان کوئ چې بېشکه مونږ تاسو بس عبث پیداکړي یاست او دا چې بېشکه تاسو به مونږ ته نه راوستل کېږئ؟** [67]

کمپیوټر یو ډېر محدود ذهن لرونکي انسان جوړ کړی او په ناڅاپي ډول سره منځ ته نه دی راغلی، دا انسان د

---

[67] (د المومنون سورت: ۱۱۵ آیت)

کمپیوټر جوړونکی دی، چې تر ټولو پیچلی دی، هغه هم په ناڅاپي ډول دې نړۍ ته نه دی راغلی، هغه بايد يو جوړونکی ولري، او که کمپیوټر د يو ملحد په نېز داسې څوک ونه مومي چې هغه بيرته را ژوندی کړي، دا د هغه د جوړونکي د وړتياو د کمزورتيا له امله دی، او که هغه د خپل ځان د جوړولو او د هغه په شاوخوا کې د کايناتو د جوړولو په اړه فکر وکړي چې په دې کې څومره نا اشنا جوړښت دی، نو دی به خامخا د خپل خالق په ځواک باندې باور وکړي، او د هغه په بيرته راژوندي کولو باندې قدرت لرلو باندې به يقين وکړي وروسته د هغه د ختمېدلو نه.

الله تعالی فرمايلي:

**آیا ته نه وینې چې بېشکه الله تعالی آسمانونه او ځمکه په حقه سره پیداکړي دي، که هغه وغواړي (نو) تاسو به ختم کړي او نوي مخلوق به راولي.** [68]

## د انسان عقل د کمپیوټر سره تشبیه کول بېرته راڅوندي کېدل باوري کوي.

کله چې د کمپیوټر جوړوونکی په بلیونونو نور کمپیوټري ماشینونه د اول ځل نه په اسانه طریقې سره جوړولی شي بلکې د هغه نه غوره او ښه یې جوړولی شي، او د الله تعالی لپاره اوچت مثال دی، نو د هغه چا به څه حال وي چې د انسان د پیدایښت پیل یې کړی او ټول کاینات یې په دې سترو استعدادونو سره پیداکړي دي، ایا بېرته د انسان پیداکول او یا د کاینا‌تو په

[68] (د ابراهیم سورت: ۱۹ایت)

دې ډول او یا له دې څخه په ښه طریقه سره پیداکولو څخه به عاجز وي؟!

الله تعالی فرمایلي:

**او هغه (الله تعالی) همغه ذات دی چې مخلوق اول ځلې پیداکوي، بیا به دغه دویم ځل راژوندی کوي او دغه (بیا راژوندي کول) هغه ته ډېر اسان دي، او خاص هغه لره تر ټولو لوړ شان (او صفت) دی په اسمانونو او ځمکه کې، او هغه ښه غالب، ښه حکمت والا دی.** [69]

که ملحد د کمپیوټر او انسان ترمنځ ښه پرتله وکړي، نو پوه به شي چې کمپیوټر د خپلو فزیکي اجزاو سره له انرژۍ پرته هیڅ ارزښت نلري، او یو عملیاتي پروګرام دی چې دا د شاوخوا ساینسي معلوماتو سره تړي. او

[69] (الروم سورت: ۲۷ ایت)

همدا رنګه انسان باید داسې انرژي ولري چې هغه ته حرکت ورکړي او په هغه کې زنده ګي راژوندۍ کړي، او دې ته د خپل ځان او د هغه څه چې د هغه په شاوخوا کې د پیژندلو توان ورکړي، او هغه د کانې، ونو او نورو حیواناتو څخه په ادراک او وړتیاوو سره په پراخه توګه توپیر کوونکی وګرځوي، که د هغه څخه دا انرژي ختمه شي نو ادراک یې هم ختمیږي، او دا هغه څه دي چې موږ یې د امیندوارۍ په لومړیو میاشتو کې د مور په رحم کې وینو، کله چې دا د غوښې یوه ټوټه وي چې هیڅ پوهه نلري، او هغه څه چې موږ یې په یو انسان کې له مرګ څخه وروسته ګورو، کله چې هغه د غوښې یوه ټوټه شي چې هیڅ پوهه نه لري، او د دې دواړو مرحلو ترمنځ مونږ دا د ژوند او پوهاوي څخه

ډک وینو، او عقل دا خبره لازموي چې ژوندی د مړي نه په یو شي سره زیات دی چې هغه د ژوند او پوهې بخشش دی، لکه هغه کمپیوټر چې کار کوي له هغه څخه زیات دی چې په محرکې انرژۍ سره کار نه کوي، دې شي ته ملحد د شعور نوم ورکړی او الله تعالی ورته روح ویلی.

**او دوی له تا نه د روح په باره کې پوښتنه کوي ته ورته ووایه: روح زما د رب له امره څني دی او تاسو ته له علم څخه برخه نه ده درکړل شوې مګر ډېره لږه.** [70]

**دوی وایي:** ایا الله تعالی داسې یوه لویه تېږه پیداکولی شي چې د هغې د بارولو وسه او طاقت ونه لري؟

[70] (اسراء سورت: ۸۵ ایت)

## الله تعالی جواب ورکوي:

او ستا رب پیدا کوي هغه څه چې ویې غواړي او هغه انتخاب کوي، دوی ته هیڅ اختیار نشته، الله تعالی لره پاکي ده، او هغه اوچت دی له هغه څه نه چې دوی یې ورسره شریکوي. [71]

**ای خلقو!** یو مثال بیانولی شي، نو تاسو دې ته ښه غوږ کیږدئ، بیشکه هغه شیان چې تاسو یې له الله تعالی نه غیر بلئ دوی له سره یو مچ هم نشي پیدا کولی اگر که دوی ده ته ټول راجمع شي او که مچ له دوی نه یو شی وتښتوي، دوی له هغه نه دغه شي نشي راخلاصولی، کمزوری دی دا طالب (د غیر الله عبادت کوونکی) او دغه مطلوب (باطل معبود) (73) دوی د

[71] (د القصص سورت: ٦٨ آیت)

**الله تعالی قدر ونه کړ، څنگه چې د هغه د قدر کولو حق دی، بېشکه الله خامخا ډېر زورور، ښه غالب دی (74).** [72]

**او دغو (مشرکانو) د الله تعالی تعظیم ونه کړ د هغه حق تعظیم، حال دا چې ځمکه ټوله د ده په قبضه کې ده د قیامت په ورځ کې او اسمانونه د ده په ښي لاس کې رانغاړل (راټول کړی) شوي دي، ده لره پاکي ده او هغه ډېر اوچت دی له هغو څېزونو نه چې دوی يې (له هغه سره) شريکوي.** [73]

نو هغه پوښتنه چې ملحدين يې بيا بيا تکراروي چې هغه د خالق ذات د توان په اړه ده چې آيا هغه د خپل ذات څخه لويه تېږه پيداکولی شي کنه! په اصل کې

---

[72] (د الحج سورت)

[73] (الزمر سورت: ٦٧)

غلطه پوښتنه ده، لکه یو څوک چې پوښتنه کوي چې آیا دایره په مثلث ډول رسمېدلی شي که نه.

پیداکوونکی ذات پروردګار دی یوازې دی د لوی شان والا دی، داسې څه نه کوي چې د هغه د شان سره نه وي مناسب، اوچت دی الله تعالی د دې شیانو څخه په اوچتوالی ډېر سره.

او الله تعالی لره لوی او اوچت مثال دی: بېشکه کوم پادري یا د لوړې مذهبي رتبې لرونکی سړی عامه سړکونو ته لوڅ نه وځي، که څه هم هغه د دې توان لري، مګر دا ناممکن ده چې هغه دې په دې شکل سره راووځي.

ځکه چې دا چلند د هغه له دیني رتبې سره مناسب نه دی.

دا فرضیه چې ملحدین د کایناتو د خالق له وجود څخه د انکار لپاره د نورو کایناتو د شتون په اړه خپروي د دوی په خلاف دلیل دی، که موږ دا د دلیل په توګه ومنو، نو دا کاینات باید یو خالق ولري.

**آیا هغه ذات چې آسمانونه او ځمکه یې پیدا کړي دي، په دې نه دی قادر چې هغه د دوی په شان (نور مخلوق) پیدا کړي؟ ولې نه! او هم دی ښه پیداکوونکی، ښه پوه دی (81). بېشکه د هغه امر (حکم) هم دا وي چې کله د یو شي اراده وکړي، دا چې هغه ته ووایي چې پیدا شه، نو هغه پیدا شي (82) نو پاکي ده هغه الله تعالی لره چې خاص د هغه په لاس**

**کې د هر شي باچاهي ده او خاص هغه ته به بېرته بېولی کېږئ (83)** [74]

**نو ته خپل مخ دېن ته نېغ (او برابر) وساته، په داسې حال کې چې حق ته مایل اوسې، (تاسو لازم ونېسئ) د الله تعالی هغه فطرت لره چې په هغه يې خلق پيداکړي دي، د الله تعالی پيداېښت لره هېڅ بدلون نشته، همدغه سم (نېغ) دين دی، او لېکن ډېر د خلقو څخه نه پوهېږي.** [75]

زموږ لپاره دا کافي ده چې د مذهبونو د عامو خلکو په منځ کې ووايو: خالق يو پرودګار دی، نو خامخا به په يو غږ ځواب ورکړي: هو، هو خالق يو دی. مګر شايد دوی په خپل منځ کې اختلاف ولري او شايد په يو ټکي

[74] (د يس سورت)

[75] (د الروم سورت: ۳۰ آيت)

یو بل ووژني (حلال کړي) او هغه دا دی چې: هغه انځور چې خالق پکې مجسم شوی دی. نو ځینې د دوی نه وايي: خالق یو دی، خو په دریو ذاتونو کې مجسم دی او یا یو زوی لري او ځینې بیا وايي: خالق د حیوان یا بت په بڼه راځي، خالق ذات له دې خبرو ډېر اوچت دی.

**د مثال په توګه:** په هغه راپور کې چې په هند کې د برتانیې حکومت ته سپارل شوی، ویل شوي:

**"د کمیټې لخوا د څېړنې عمومي پایله دا ده چې د هند اکثریت په یو لوړ ذات کې په کلکه باور لري."**[76]

[76] موسوعة قصة الحضارة، ول دیورانت، ۳ ټوک، ۲۰۹ مخ.

# رهان باسکال او د خالق په شتون باور

د هغو مسألو څخه چې د ځینو ملحدینو له خوا راپورته شوي دا دي: که چیرته په دوی باندې په یو پرودګار ایمان لازم وي، او د یو دین او د دې دین د سپیڅلي کتاب پیروي په دوی لازمه وي، نو دوی باید په کوم پروردګار او په کوم دین او په کوم کتاب ایمان راوړي؟

ستاسو حق معبود یو معبود دی، نو هغه کسان چې په اخرت ایمان نه راوړي د هغوی زړونه منکر دي او دوی تکبر کوونکي دي (22) حقیقت دا دی چې بېشکه الله تعالی پوهېږي په هغه څه چې دوی یې پټوي او په هغه څه چې دوی یې څرګندوي، بېشکه هغه (الله تعالی) تکبر کوونکي نه خوښوي. [77]

(د النحل سورت: ۲۳ آیت) [77]

په خالق باندې ایمان باید په پوره یقین سره وي نه د احتمالاتو پر بنسټ، او هغه د کایناتو او هغه څه چې په دې کې شتون لري پیداکوونکی دی، یوازې یک تنها دی چې د هغه په پاچاهۍ کې د هغه سره شریک نشته او نه د هغه لپاره څه اولاد شته.

او د کوم بوت یا انسان او یا حیوان په شکل کې ندی پوښل شوی. هغه خالق چې ټول خلک ورته په مصیبت کې ورګرځي که د دوی خوښه وي او کنه، که په قصد سره وي او که پغیر له قصده.

**او حق معبود ستاسو یو معبود دی، نشته لایق د بنده ګۍ مگر یوازې هغه دی چې ډېر زیات مهربان، بې حده رحم لرونکی دی.** [78]

---

[78] (د البقرې سورت: ١٦٣آیت )

**د پاسکال رهان** د مشهورې نظریې خپروونکي  خپل پیروان هڅوي چې په هر حالت کې په الله باور وکړي.

رهان پاسکال دا خبره کړې:

**که چېرته په الله تعالی ایمان ولرې او هغه وي، نو بېشکه ستا بدله به په جنت کې همېشوالی وي، او دا داسې یوه ګټه ده چې هېڅ حد یې نشته.**

که چېرته الله تعالی وي او ته پرې ایمان ونه لرې، نو ستا بدله به په جهنم کې همېشوالی وي، او دا داسې یو تاوان دی چې هېڅ حد یې نشته.

که چېرته په الله تعالی ایمان ولرې او هغه نه وي، نو تا ته په دې بدله نشي درکېدلی، او دا یو محدود تاوان دی.

که چېرته په الله تعالی ایمان ونه لرې او هغه نه وي، نو تا ته سزا نه درکول کېږي خو مګر تا به زنده ګي تیره کړې وي، او دا یوه محدوده ګټه ده.

**ملحد وايي:** "که زه د دې نظريې پلي کول وغواړم، زه بايد د کوم اله عبادت وکړم: مسيح، د عيسويانو اله، يا کرشنا، د هندوانو اله، يا بودا، د بودايانو اله، او که د مسلمانانو د اله؟

**مونږ هغه ته وايو:** ته بايد په هغه چا ايمان راوړی او بنده ګي يې وکړې کوم چې هر څوک ورته په سختی کې ورګرځي، د بودا، کرشنا، مسيح او د ټولو انسانانو خالق دی، کوم چې ته يې پيداکړی يې او د مرګ په وخت کې به تا مړ کوي. بېشکه چې د چا سره يو شی نه وي هغه يې بل ته هم نشي ورکولی، نو آيا دا

**عقل مني چې په غوښتنه کې سره بادشاه او عام خلک برابر شي؟**

**ته ووايه: ای خلقو! که چېرې تاسو زما د دين په باره کې په شک کې ياست، نو زه خو د هغو څېزونو عبادت نه کوم چې تاسو يې له الله نه پرته عبادت کوئ، او لېکن زه د هغه الله تعالی عبادت کوم چې تاسو وفات کوي، او ما ته حکم کړی شوی دی دا چې زه شم له مومنانو څخه.** [79]

**ملحد باور لري؛** که د هغه خوښه وي او کنه! مگر هغه کفر ښکاره کوي او ايمان او باور د ظلم او لويی(تکبر) له وجې پټوي.

[79] (د يونس سورت: ۱۰۴ آيت)

**او دوی له دغو (معجزو) انکار وکړود ظلم او سرکښۍ په وجه، حال دا چې د دوی نفسونو په دغو یقین کړی و، نو ته وګوره د فساد کوونکو انجام څنګه و؟** [80]

**د بېلګې په توګه:** کله چې د الوتکې مسافر د دې د حتمي غورځېدو احساس وکړي، د دوی د مذهب او فرقې په پام کې نیولو پرته، د ملحدانو په ګډون دوی د مرستې لپاره هغه ځواک ته مخه کوي کوم چې په اسمان کې دی(۱)، په دې وخت کې ګویا کې دوی د اسلام په دین باندې سره متحد شول، مګر کله چې دوی د دې نه د خلاصون ډاډ ترلاسه کړي نو دوی بېرته د واسطو او منځګړو نېولو ته راګرځي تر څو بېرته سره جدا شي.

[80] (د النمل سورت: ۱۴ آیت)

**نو کله چې دوی په کښتۍ کې سواره شي (نو) دوی الله تعالی رابولي، په داسې حال کې چې خاص هغه لره دین خالص کوونکي وي، نو کله چې هغه (الله تعالی) دوی ته وچې ته نجات ورکړي (نو) ناڅاپه دوی (له الله تعالی) سره شریکان نیسي.** [81]

قرآن کریم په دې خبره ټینګار کوي چې د کائناتو په خالق باندې د ایمان نه لرلو اعلان له ضد او غرور پرته بل څه نه دي.

**بېشکه هغه کسان چې د الله تعالی په آیتونو کې جګړې کوي، بې له داسې دلیله چې دوی ته راغلې وي، د دوی په سینو کې ندی مګر کبر چې دوی دغه (د کبر مقتضی) ته رسېدونکي ندي، نو ته په الله تعالی**

[81] (د عنکبوت سورت: ٦٥ آیت)

**پورې پناه ونېسه، بېشکه هغه، هم هغه ښه اوریدونکی، ښه لیدونکی دی.** [82]

لکه څنگه چې هر چا په مصیبت کې مستقیم خالق طرف ته رجوع وکړه، نو دوی باید په خوشحالۍ او مصیبتونو کې نېغ په نېغه هغه ته توجه وکړي، او دا هغه الله دی چې د اسلام دین د هغه بنده گۍ ته رابلل کوي، او د هغه په اخري پیغمبر محمد صلی الله علیه وسلم باندې ایمان راوړلو ته رابلل کوي، او دهغه په سپېڅلي کتاب چې قرآن کریم دی ایمان راوړلو ته رابلل کوي.

**تاسو ووایئ: مونږ په الله تعالی ایمان راوړی دی او په هغه څه چې مونږ ته نازل کړی شوي دي، او په هغه څه**

[82] (غافر سورت: ٥٦ آیت)

**چې ابراهیم او اسماعیل او اسحاق او یعقوب او د هغوی اولادې ته نازل کړی شوي دي، (او مونږ ایمان راوړی دی) په هغه څه چې موسی او عیسی ته ورکړی شوي دي، او په هغه څه چې د خپل رب له جانبه (نورو) پیغمبرانو ته ورکړی شوي دي، مونږ په دوی کې د هیڅ یو په مینځ کې فرق نه کوو(۱)، او مونږ خاص د هغه الله تعالی حکم منونکي یو.** [83]

لکه څنگه چې ډیری د هغو پیغمبرانو او رسولانو نه کوم چې خالق بېلابېلو قومونو ته لیږلي وو، نومونه یې په قران کریم کې ذکر شوي (لکه مسیح، موسی، ابراهیم، نوح، داؤد، سلیمان، اسماعیل، اسحاق او یوسف تر پایه. .)، نور هم شته چې نه دي ذکر شوي.

---

[83] (د البقرې سورت: ۱۳٦ آیت)

نو دا لرې نه ده چې شايد د ځيني خود ساخته دينونو سرچينې د سپيڅلي اديانو اصل پيغمبران وي چې خپلو قومونو يې بنده ګي کړي وي او د وخت په تېرېدلو سره يې د الله تعالی نه پرته هغوی لمانځلي وي.

لکه څنګه چې د نوح عليه السلام قوم خپل نېکان لمانځل او د هغوی بنده ګي يې کوله.

**«او (مونږ ليږلي وو) ډېر رسولان، چې يقينا د هغوی احوال مونږ تا ته لدې نه مخکې بيان کړی دي او (نور) رسولان چې د هغوی احوال مونږ تا ته نه دي بيان کړي..»** [84]

[84] (د النساء سورت: ۱٦۴ آيت)

**علي عزت بیگوویچ** وايي:

**ارسطو درې ساینسي کتابونه لیکلي، په طبیعت کې، په اسمانونو کې، په ځمکه کې، په ساینسي لحاظ په دې درې کتابونو کې نن ورځ یوه جمله سمه نشته، دا درې کتابونه د ساینسي لحاظه په لسو کې د صفر سره برابر دي،** بل طرف ته قرآن کریم په داسې حال کې دی لکه **موریس بوکاي** چې پخپل مشهور کتاب کې وايي: **(قرآن کریم او انجیل او تورات د عصري ساینس له نظره) حقیقت دا دی چې ما د قران کریم داسې یو آیت پیدا نه کړ چې هغه د یو ساینسي حقیقت سره په ټکر کې وي، بلکې قرآن کریم په ډېرو لارو کې د عصري ساینس څخه مخکې شوی، او ډېر ساینسي نظریات يې سم کړي کومو چې په هغه وخت کې شتون درلود او**

**رایج ول، د بیلګې په توګه، د ځمکې د اوبو نظریه چې دا د براعظمونو په لاندیني برخه کې د یوې ژورې کندې له لارې رامینځته شوي، د ځمکې اوبه له سمندرونو څخه د ځمکې ژورو ته لیږدول شوي، آیا قرآن دا ساینسي افسانه چې په هغه وخت کې شتون درلود تایید کړې؟** او که ویلي یې دي:

**آیا تا نه دي کتلي چې بېشکه الله تعالی له بره نه اوبه نازلې کړي دي، بیا یې دغه (اوبه) په ځمکه کې په چېنو کې ننه ایستي دي...** [85]

نو د ځمکې د اوبو سرچینه هغه چینې دي چې د بارانونو په واسطه رامینځته شوي، نه د ارسطو ژوره

[85] (د الزمر سورت: ۲۱ آیت)

کنده کومه چې د براعظم په ژوره کې ده، کومې چې په هغه وخت کې شهرت درلود.

که موږ ووایو چې هر څه یوه سرچینه لري، او دا سرچینه بله سرچینه لري، او که دا لړۍ دوام وکړي، نو دا منطقي ده چې موږ پیل یا پای ته ورسیږو. موږ باید یوې سرچینې ته ورسیږو چې هیڅ سرچینه نلري، او دا هغه څه دي چې موږ یې "**بنسټیز لامل**" بولو، او دا د اصلي پیښې څخه توپیر لري، د بیلګې په توګه، که موږ فرض کړو چې لویه چاودنه اصلي پیښه ده، نو خالق ذات د دې پیښې اصلي لامل دی.

بېشکه دا وینا چې د کایناتو خالق یو بل خالق ته اړتیا لري، سره د دې نه چې هغه خالق دی، دا داسې ده چې

مونږ ووايو: **مالگه د مالگې لپاره مالگې ته اړتيا لري سره د دې نه چې هغه مالگين وي.**

او دا پوښتنه: **"الله چا پيدا کړی؟"** د دې پوښتنې سره برابره ده: د هغه شي څخه مخکې څه شی دی چې مخکې ترې هيڅ شی نه و؟ او د دې پوښتنې سره برابر ده: د هغه شی پيل څه شی دی چې هيڅ پيل نلري؟ او همدارنگه د دې پوښتنې سره مساوي ده چې: "د زيړ- رنگ- بوی څه رقم دی؟"

لکه څنگه چې زيړ رنگ د هغو شيانو په ليست کې نه راځي چې بوی لري، او الله تعالى لره اوچت مثال دی، نو خالق ذات هم د پيدا شوي شيانو په ليست کې نه راځي.

کائنات خالق لري او هغه یو دی، او دا پوښتنه چې **"خالق چا پیدا کړی"** سمه نه ده. د مثال په توګه موږ د عسکر او مرمۍ مشهور مثال اخلو، عسکر غواړي ډزې وکړي، مګر د ډزو کولو لپاره، عسکر باید د هغه نه شاته عسکر څخه اجازه وغواړي، او دا عسکر چې اجازه ورکوي باید د هغه عسکر څخه اجازه وغواړي چې د هغه تر شا دی، او داسې تر لا یتناهي پورې، پوښتنه دا ده: آیا سرتیری به ډزې وکړي؟

ځواب: نه؛ ځکه هغه عسکر ته نه رسیږي چې هغه ته د ډزو اجازه ورکړي، خو که دا سلسله په داسې یو کس سره پای ته ورسیږي چې د هغه له پاسه بل څوک نه وي چې دې ته د ډز کولو اجازه ورکړي، نو مرمۍ به ووځي، خو د دې کس پرته، که څومره کسان ډیر شي،

هېڅکله به مرمۍ ونه وځي، او دوی د صفرونو په شان دي چې د يو بل سره يې کېږدې، نو که څومره ډېر وي او لايتناهي ته ورسېږي، نو بيا هم د هېڅ سره نه دي برابر، مگر که مخکې ترې عدد کېښودلی شي: يو يا زيات عدد.

د يو توکي توليدونکی شرکت لکه تلويزيون يا يخچال د مثال په توگه، د وسيلې د کارولو لپاره قوانين او مقررات ټاکي، او دا لارښوونې په يو کتاب کې ليکي چې د وسيلې کارولو څرنگوالی تشريح کوي او د وسيلې سره يې يوځای کوي.

او اخېستونکی (استعمالوونکی) بايد دا لارښوونې تعقيب کړي که چيرې هغه غواړي د اړتيا سره سم د وسيلې څخه گټه پورته کړي، پداسې حال کې چې

تولیدوونکی شرکت دې قوانینو ته غاړه نه ږدي. الله تعالی لره اوچت مثال دی، نو پس الله تعالی هغه ذات دی چې د علت قانون یې پیداکړی، او دا نا ممکن ده چې الله تعالی دې دې قانون ته غاړه کېږدي کوم یې چې پیداکړی، سره د دې نه چې هغه لره ازاد قدرت دی او هغه چې څه وغواړي کوي یې.

که یو سړی خپلې کوټې ته ننوځي او وګوري چې د کړکۍ شیشه یې ماته ده، نو په دغه وخت کې به خامخا د خپلې میرمنې څخه پوښتنه کوي چې دکړکۍ شیشه چا ماته کړې، نو هغوی به ورته جواب ورکړي: دا په خپله ناڅاپي ماته شوه.

دلته جواب غلط دی، ځکه ده داسې پوښتنه نه ده کړې چې دا کړکۍ څرنګه ماته شوه، بلکې پوښتنه یې کړې

چې کړکۍ چا ماته کړې؟ تصادف (ناڅاپي ډول) د کار صفت دی، نه د کارکوونکي.

نو لهذا دا سمه نه ده چې د تصادف (ناڅاپي ډول) کلمې سره دې پوښتنې ته جواب ورکړو چې کاینات چا پیدا کړي.

او که فرض کړو چې یو څوک خپلې کوټې ته ننوځي او وګوري چې د کړکۍ شیشه یې ماته شوې ده، او له خپلې مېرمنې څخه پوښتنه وکړي چې دا چا ماته کړې، نو هغوی جواب ورکړي: فلانکي په ناڅاپي ډول سره ماته کړې. دلته بیا جواب معقول او د منلو وړ دی، ځکه د شیشې ماتېدل یو ناڅاپي کار دی کیدای شي په ناڅاپي ډول پېښ شي. خو که په بله ورځ همدغه کس خپلې کوټې ته ننوت او د کړکۍ شیشې یې د پخوا په

ځېر ترمیم شوې وې، او بیا یې د خپلې مېرمنې څخه وپوښتل: دا چا جوړه کړې، او دوی ورته جواب ورکړي: چې فلانکي په ناڅاپي ډول سره جوړه کړه، نو دلته بیا جواب د منلو وړ ندی، بلکې د عقل د لحاظه ناشونی او نا ممکن کار دی، ځکه د شیشې جوړول یو ناڅاپي کار نه دی، لدې وجې نه مونږ وایو: د عقل د لحاظه دا ناشوني ده چې دا کاینات او مخلوقات دې په ناڅاپي ډول رامنځته شوي وي، بلکې دا په قصد او ارادې سره جوړ شوي. او پدې سره تصادف (ناڅاپي ډول) د کایناتو د پیدایښت له مسئلې څخه د تل لپاره وځي.

**ډاکټر رابرټ وایټ**، له ۱۹٦۰ کال راهیسې د مغز یا سر د انتقال په برخه کې یو له سترو کارکوونکو څخه ګڼل

کېږي، په یوه بې سارې تجربه کې په دې وتوانید چې د یو شادو (بېزو) دماغ ترلاسه کړي او د ځانګړو ماشینونو په کارولو سره یې د یخولو له لارې له بدن څخه بهر ژوندي وساتي.

په داسې توګه چې د دې ځانګړو ماشینونو په مرسته د مصنوعي زړه په شان دې مغزو ته د وینې رسولو لپاره کار وکړي او په دې توګه دماغ په ښه حالت کې وساتل شي او د بل چا بدن ته د لیږد لپاره چمتو شي.

او دا پخوانۍ تجربه په هغه ملحد باندې رد دی چې وایي ژوند د دماغو په خرابېدو سره خرابېږي، ځکه چې بېزو (شادو) مړ شو خو دماغ یې پاتي شو او خراب نه شول، نو ایا د ځمکې ټول ساینس پوهان کولی شي چې دا روغ دماغ د مړ شوي شادو بدن ته ورکړي تر

څو بېرته راژوندی شي؟ طبیعي خبره ده چې دا کار نا ممکن دی.

دا معلومه ده چې د ساینسي معلوماتو په اړه د کمپیوټر ادراک د انسانانو لخوا د پخوانیو پروګرامونو پایله ده، نو آیا انسان کولی شي چې له پخوانیو پروګرامونو پرته د هغه شاوخوا څه درک کړي. هغه څه چې پنځه حواس یي موږ ته لیږدوي هغه د بریښنایی اشارو پرته بل څه ندي چې د حواس څخه دماغ ته د اعصابو له لارې لیږدول کیږي نو په ذهن کې پیژندل کیږي. نو ټول هغه څه چې مونږ پرې خبرېږو د دې کایناتو څخه دا نور څه ندي مګر دغه د دماغو په منځ کې بریښنایي اشارې دي، نو دا څه شی دی چې دماغ د هغه  په وجه د حواسو په هر څه باندې پوهېږي او د هغو ترمنځ ډیر

په دقت سره توپیر کوي، چې دا غټ دی او دا وړوکی دی، دا زیږ دی او دا شین، دا اواز خوږ دی او دا بد.

نو دا کوم ماشین دی چې زموږ دننه کار کوي ترڅو ټول مختلف حسي شیان درک کړي، نه یوازې له زیږون وروسته بلکه د زیږون دمخه هم، ماشوم د مور په ګیډه کې د روح له اچولو وروسته ځان احساسوي نو خندا کوي او خپله ګوته په خوله کوي. او خپل غړي خوځوي، لکه څنګه چې په نورو هم پوهیږي نو اوریدل کولی شي او د غږ جواب ورکولی شي او د مور د خوشحالۍ او خپګان ترمنځ توپیر کولی شي، نو دې ته دا چا ښودلي او دا یې پروګرام کړي تر څو دا ټول کارونه وکړي!.

طبیعت د کایناتو خالق نه شی کیدی، ځکه چې طبیعت د وخت، ځای او انرژۍ څخه جوړ دی، نو طبیعت داسې یو چا ته محتاج دی چې دا عوامل یې پیداکړي دي، او هغه یې داسې پېچلي گرځولي، سره د دومره غټو توپیرونو نه د دوی په جوړښتونو، طبیعتونو او رنگونو کې، بیا طبیعت څنگه پوه شو چې د انسان ذهن باید د کایناتو دې ټولو ویرونکو توضیحاتو ته پام وکړي، نو د ادراک ماشین یې پکې چمتو کړ هغه چې د شیانو په منځ کې توپیر کوي، سره د دې نه چې دا یوازې برېښنایي اشارې دي چې د حواسو نه دماغو ته انتقالېږي. د نړۍ د پیچلتیا او د ادراک د پیچلتیا تر منځ اړیکه باید د دقیقو محاسبو سره برنامه شوي وي نه د تصادف له مخې،که دا یو تصادف و، نو طبیعت به هغه

ته دا توان ورکړی و چې هر څه په دې کې درک کړي نو هېڅ شی به ترې نشو پټېدلی، یا به طبیعت د هغه د هر څه د درک کولو مخه نیولې وی، مګر دا چې د درک کولو ماشین یو پروګرام شوی شی دی نو هغه په یو ځانګړي چوکاټ کې کار کوي، او په دې توګه هر ژوندی موجود خپل پروګرامونه لري چې هغه ته دا توان ورکوي چې ځینې شیان درک کړي او نور شیان له هغې څخه پټ پاتي شي.

د ادم علیه السلام د بنې آدمو پلار عزت یوازې لدې وجې نه دی چې هغه ځانته د ختې څخه پیدا شوی دی، بلکې دا هم دی چې هغه په مستقیم ډول د رب العالمین په لاسونو جوړ شوی دی، او له ملایکو څخه

(د الله تعالی) غوښتنه وه چې آدم ته د الله تعالی په اطاعت کې سجده وکړي.

الله تعالی د آدم علیه السلام نسل د سپکو اوبو څخه پیل کړ ترڅو د مخلوق د سرچینې او د خالق د یووالي ثرګندونه وکړي، او دا چې هغه آدم د خپلو ټولو مخلوقاتو نه جلا کړ داسې چې هغه یې خپلواک پیداکړ د انسان د عزت د وجې نه او د رب العالمین د حکمت د ښکاره کولو په خاطر چې هغه یې په ځمکه کې خلیفه وګرځاوه، او دا چې د آدم (علیه السلام) پیدایښت له پلار او مور پرته شوی دا هم د استعداد د پراخوالي ثرګندونه ده، او بل مثال یې د عیسی (علیه السلام) په پیدایښت کې له پلار پرته بیان کړی د دې لپاره چې د قدرت او توان په پراخوالي معجزه شي او

خلکو ته یوه نښه شي، او هغه څه چې ملحدین یې د پرمختګ په نظریې کې د انکار کولو هڅه کوي د دوی په وړاندې دلیل دي.

**بیشکه د عیسی-علیه السلام- مثال د الله تعالی په نیز د ادم-علیه السلام- د مثال په شان دی، الله تعالی هغه له خاورې پیدا کړ، بیا یې هغه ته ووېل: (پیدا) شه، نو (پیدا) شو.** [86]

کله چې یو سړی خپل ځان ډېر مالداره او نهایت زیات سخي ومومي، نو هغه به ملګري او مینه وال د خوراک او څښاک لپاره رابلي.

زموږ دا صفات د هغه څه یوه کوچنۍ برخه ده کوم چې د الله تعالی سره دي، نو الله تعالی پیداکوونکی

[86] (د آل عمران سورت: 59آیت)

ذات دی هغه لره د عظمت او ښکلا ځانګړتیاوې دي، هغه خورا مهربان، ډیر رحم کوونکی، ډیر سخي او ورکوونکی ذات دی.

هغه موږ د خپلې بنده ګۍ لپاره پیداکړي یو، د دې لپاره چې په مونږ مهرباني وکړي او مونږ خوشحاله کړي او مونږ ته نعمتونه راکړي، خو که چیرته مونږ هغه ته بنده ګي خاص کړو او د هغه خبره ومنو او حکمونه یې پلي کړو، او باور ولرو چې د انسانانو ټولې ښایسته ځانګړتیاوې د هغه له ځانګړتیاوو څخه سرچینه اخلي.

هغه مونږ پیداکړي یو او مونږ ته یې د غوره کولو واک راکړی، نو یا به مونږ د تابعدارۍ او بنده ګۍ لار غوره کوو، او یا به د هغه د شتون نه انکار کوو او د سرکښۍ او نافرمانۍ لاره به غوره کوو.

الله پاک پيريان او انسانان په انفرادي ډول له نورو مخلوقاتو څخه د انتخاب په ازادۍ کې ځانګړي کړي دي.

او د انسان تفاوت دا دی چې د هغه مستقيما خپل رب ته متوجه کېدل پرته له کوم ولي او يا کاهن څخه، او د انسان د خالصې ارادې له مخې الله تعالی ته بنده ګي خاص کول، او پوره باور لرل چې بېشکه الله تعالی لره هيڅ شريک او نه اولاد شته، او نه په کوم انسان، حيوان، بوت او يا تيږې (ډبرې) کې ننوتلی. او په دې توګه سره دې- انسان- د الله تعالی حکمت په ځای کړ د کوم له مخې يې چې انسان د ټولو مخلوقاتو په سر کې ګرځولی.

په انتخاب کې اراده او وړتیا په خپله یو نعمت دی، کله چې په سمه توګه وکارول شي او لارښوونه یې وشي، او که د فاسدو موخو او اهدافو لپاره وکارول شي نو بیا عذاب دی.

خالق کولای شو چې مونږ اطاعت او عبادت ته اړ کړي، مګر په زوره اړ کول د انسان د پیدایښت مطلوب هدف نه شي ترلاسه کولی(۱).

هغه درس چې الله پاک انسان ته د آدم (علیه السلام) د توبې قبلولو په وخت کې وروښوده کله یې چې د ادم (علیه السلام) توبه قبوله کړه ځکه چې هغه د حرامې ونې څخه خوراک کړی و، دا د الله تعالی له طرفه د بشریت لپاره د لومړنۍ بخښنې په شان وه، داسې چې میراثي ګناه هیڅ معنی نه لري، نو په یو چا باندې د بل

چا د ګناه پېټی نشي بارېدلی، پس هر يو انسان يوازې خپله ګناه باروي، او دا په مونږ باندې د رب العالمين له لورې مهرباني ده، او دا چې انسان د ګناه څخه پاک پيداکېږي، او هغه د بلوغ د عمر له پيل څخه د خپلو اعمالو مسوول دی.

يو انسان سره د هغې ګناه حساب نه کېږي چې هغه نه وي کړي، لکه څرنګه چې هغه خلاصون نشي موندلی مګر په خپل ايمان او نيک عمل، الله تعالی انسان ته زنده ګي ورکړې او هغه ته يې د ازمېښت لپاره اراده ورکړې، او هغه يوازې د خپلو کړنو څخه مسئوول دی. او دا چې انسان يوازې د خپلې پوهې او وړتيا په حدودو کې د انتخاب ازادي لري. محاسبه د مسؤوليت په شتون او د انتخاب په امکاناتو پورې اړه لري، ځکه

چې خالق یو شخص سره د هغه د شکل او ټولنیز حالت په سر حساب نه کوي. او هغه ازادي چې په شخړو او مبارزو کې راګیر وي د لوړې مرتبې او عزت والا ده د هغه نه چې یو انسان خوشحاله وي خو اراده او واک نه لري.

## حساب او اجر پرته له ارادې بې معنا دي.

دا منطقي خبره نه ده چې الله تعالی خلکو ته د انتخاب آزادي ورکړي او بیا یې بې حسابه پریږدي. حساب مسؤولیت تعقیبوي، د قیامت ورځ زموږ د شتون د نظام بشپړتیا ده.

الحاد په انسانانو کې په مختلفو لارو وده وکړه، مګر دا وروسته له هغه راڅرګند شو چې د پخوانیو آسماني دینونو پیروانو د پرودګار ریښتنی مفهوم تحریف کړ، او

د دې تحریف شوي مفکورې پیچلتیا د خالق په داسې ځانګړتیاوو سره بیانول چې د هغه د عظمت سره نه ښایي لکه سترتیا، آرام کول، نه پوهیدل او داسې نور، کوم چې د هغه ساده مفهوم سره مخالفت کوي چې الله تعالی د انسانانو په زړونو کې جوړ کړی. د نورو لاملونو له جملې څخه چې خلک یې الحاد ته اړ کړي: د پادریانو او دیني بنسټونو د نه منلو وړ غوښتنې او حکمونه او د دنیاوي او سیاسي ګټو ترلاسه کول دي.

د ژوند لومړنی هدف د خوښۍ بې ځایه احساس نه دی؛ بلکه دا د الله تعالی د پیژندلو او عبادت کولو له لارې د ژورې داخلي آرامۍ ترلاسه کول دي. د الهي

هدف ترلاسه کول به د ابدي نعمت او ریښتیني خوښۍ لامل شي.

نو که دا زموږ لومړنی هدف وي، نو دې موخې ته د رسیدو لپاره د هر ډول ستونزو او کړاونو سره مخامخ کېدل به اسان وي.

دا دنیا یوه ازموینه ده، او انسان له دې دنیا څخه یوازې د بریا یا ناکامۍ په شهادتنامې سره وځي. له دې دنیا سره مینه کول د انسان لپاره خطا ده، دا د هغه چا په څېر دی چې وايي له امتحان سره مینه لري او په دې پورې تړلی دی او هغه شهادتنامه نه غواړي چې له دې امتحان څخه پرې وځي.

د الوتکې جوړونکي ته ورګرځېدل کله چې موږ د الوتکې د انجن په میکانیزم نه پوهیږو په فکر کې کمی

او نقصان نه دی، که څه هم د الوتکې جوړوونکی د انجن میکانیزم په هیڅ مرحله کې شتون نلري، مگر د هغو میکانیزمونو د شتون مسولیت لري چې موږ یې پیژنو.

پرودگار د دې لپاره پرودگار نه دی چې هغه تشې بندي کړي چې د جهل له وجې رامنځ ته شوي، مگر هغه د هغو ټولو میکانیزمونو اصلي لامل دی چې ساینس یې کشف کوي.

مادي ساینس وايي چی کاینات له هیڅ شي څخه پیدا شوي دي، په داسی حال کی چی ساینس پخپله وایی چی ماده نه له منځه ځي او نه د هېڅ شي څخه پیداکېږي، دا هغه څه دي چی ساینس پوهان یی په تعجب کی کړي دي چی ماده له هیڅ شي څخه نه ده

پیدا شوی نو کاینات څنګه له هیڅ شي څخه رامنځ ته شوي؟ اوس د دین رول رامنځ ته کېږي چې هغه څه تشریح کړي چې ساینس یې د تشریح کولو توان نلري، او دین دوی ته ویلي چې ماده له منځه ځي، او د مادې لپاره یو لوی خالق ذات دی چې هغه یې د هیڅ شي څخه پیداکړې.

د کایناتو قوانین یوازې د کایناتو حقیقت دی او د کائناتو د موجودیت د علت وضاحت ندی، او کوم قوانین چې کشف کېږي هغه د جوړوونکي د وجود نفي نه بلکې د الله تعالی د مخلوق یو بیان دی.

**د بېلګې په توګه**: یو څوک چې هره میاشت د سپما موسسې ته یوه اندازه پیسې جمع کوي او د کال په پای کې راځي چې هغه پیسې او ګټه یې ترلاسه کړي کومې

چې يې د دې موسسې سره خوندي کړي، نو محاسب ورته ووايي: مونږ چې د ضرب کوم قانون د دې پيسو په شمېرلو کې استعمال کړی هغه تا لره دا پيسې رامېنځته کړي.

ايا دا کومه معنی لري؟ په حقيقت کې پرته له دې چې دې کس کومې پيسې پدې کې جمع کړي د دې د پيسو شمېر (بيلانس) به صفر پاتي شي، نو له همدې امله، دا دعوه کول چې د طبيعت قوانينو کاينات رامنځته کړي د عقل او منطق سره په ټکر کې ده.

افکار او قوانين د شيانو تګلاره په دقت او ځېرکتيا سره بيانوي مګر د نه شتون څخه څه شی نه شي رامېنځته کيدلی، د حرکت قوانين کولی شي د باسکيټبال طريقه او تګلاره تشريح کړي، مګر بال ته حرکت د لوبغاړي

لاس ورکوي، او له همدې امله قوانين داسې يو شي ته اړتيا لري چې په يو ځای او وخت کې د ځانګړي ځواک لخوا اغيزمن کيږي، او پرته له دې عناصرو څخه دا قوانين هيڅ کار نه کوي، بلکې په حقيقت کې دسره لا شتون نلري.

که د بوډۍ ټال (رنګين کمان) په باران باندې د لمر د وړانګو انعکاس وي، نو دا خبره غلطه ده چې: د بوډۍ ټال (رنګين کمان) ته په کتلو سره زموږ خوند اخيستل هغه څه دي چې موږ د خالق په شتون باور ته رسوي، او دا غلطه ده چې د هغه ميکانيزم په کشفولو سره چې د بوډۍ ټال (رنګين کمان) رنګونه يې ښودلي، دا باور وشي چې په قطعي ډول سره دا د خالق ذات شتون نفي کوي. د بېلګې په توګه: که يو سړی په يوه لاره

روان وي او د هغه شخه یې موبایل بې درکه شو، او یوه د عامه ټیلیفون کوټه یې وموندله او ویې غوښتل چې د دې نه استفاده وکړي او د خپلې میرمنې سره اړیکه ونیسي، نو آیا د دې سړي د دې ټلیفون او د هغه د کاري مېکانېزم نه فایده اخېستل د دې خبرې دلیل کېدلی شي چې دا ټېلیفون په اصل کې هیڅ کوم جوړوونکی نه لري؟ یا عامه ټیلیفون یو ریښتینی وجود لري او جوړونکی لري؟

له یو شي شخه ګټه اخستل د شیانو د جوړونکي شتون نه ردوي، بلکې د هغه تایید کوي. په حقیقت کې د انسان د بوډۍ ټال (رنګین کمان) د منظرې شخه مزه او خوند اخېستل او د هغې آلي او مېکانېزم کشفول چې دا

يې راښکاره کړي د لمر او د باران د راورونکي ذات شتون نه ردوي.

د الحاد تضاد په دې کې دی چې دا دې باور ته اړتيا لري چې لويه چاودنه د دوی د فرضيې له مخې د بهرني ځواک له مداخلې پرته رامينځته شوې، او کاينات پرته له کوم هدف څخه رامينځته شوي. او د دوامداره اتحاديې د قوانينو له مخې، په دغه وخت کې پرته له کوم هدفه د نمونو تکرار او بيا توليد کولو وړتيا په ډير دقت سره شتون درلود. له موږ څخه غوښتل کيږي چې پدې باور ولرو چې هوښيارتيا، يوازې فکر او سوچ، او شعور په يو ډول د پټو او غير منطقي سرچينو څخه پرته له کوم هدف څخه رامنځ ته کيدی شي. او دا منل چې د کوډ شويو معلوماتو لوی بنډل

(DNA) پرته له کوم پروګرامر (جوړوونکي) او هدف څخه ځان لیکلی، او دا مړه شوې ماده بیا ناڅاپه بې هدفه ښکاره کیدای شي.

د ترموډینامیک دویم قانون وایي چې وخت په یوه خطي Linear ډول تیریږي نه په دوراني cyclic ډول، نو د تودوخې له ساړه بدن څخه ګرم بدن ته لیږدول ناممکن دي. په دې توګه دا قانون د وخت او نړۍ د سایکلیک نظریه ردوي، او همدارنګه په یو بل کې د روح د لیږد فلسفه کومه چې د هندو، بودایي او دودیز چینایي مذهبونه پرې باوري دي، او دا هغه لوی کفري مذهبونه دي چې باور لري چې خالق د یو بوت یا ډبرې (تیږي) او داسې نورو په شکل کې مجسم

شوی دی. دا قانون د کاېناتو د پیل او پای شتون تاییدوي او په دې توګه د روحونه د لیږد فلسفه ردوي.

الله تعالی فرمایلي:

**.. او هغه کسان چې له هغه نه غیر یې دوستان (کار سازي) نیولي دي (وایي): مونږ د دوی عبادت نه کوو مګر د دې لپاره چې مونږ الله تعالی ته نږدې کړي، ښه نږدې کول ....** [87]

دا ټول د خالق له حقیقي مفهوم څخه د ناپوهۍ له امله وو، چې ذهنونه یې مشوش کړل او په دې توګه یې الحاد ته لاره هواره کړه، او د خالق د موجودیت د

[87] (د الزمر سورت: ۳ آیت)

لاملونو په اړه پوښتنې او نورې پوښتنې چې د هغه په وجود کې شک پیداکوونکي دي.

په کایناتو کې چې هر څه دي د خالق تر واک لاندې دي، نو یوازې هغه جامعه پوهه، مطلق علم، ورتیا او قدرت لري چې هر څه د هغه د ارادې تابع کړي. لمر، سیارې او کهکشانونه د پیدایښت له پیل راهیسې په خورا دقت سره کار کوي، او هم دا دقت او ورتیا د انسان په تخلیق کې هم پلي کیږي.

که موږ د انسانانو او د هغوی د بدن او د دوی د روحونو ترمنځ همغږي په پام کې ونیسو، نو دا موږ ته روښانه کیږي چې دا ممکنه نده چې دا روحونه د حیواناتو په بدن کې ژوند وکړي او نشي کولی د نباتاتو او حشراتو (د روحونو بیا زیږون) ترمنځ وګرځي.

الله تعالی انسان ته د عقل او پوهې په وجه امتیاز ورکړی او په ځمکه کې یې د خلیفه په توګه ګرځولی، او هغه یې غوره کړی او عزتمند کړی یې دي او د هغه مرتبه یې د ټولو مخلوقاتو نه اوچته کړې. او د خالق له عدل څخه دا دي چې د قیامت ورځ، جنت او دوزخ شتون لري، ځکه چې په دې ورځ کې ټول ښه او بد عملونه اندازه کیږي او تول کیږي.

الله تعالی فرمایلي:

**نو هغه څوک چې د یوې ذرې په اندازه نېک عمل وکړي (نو) دی به هغه ووېني (۷ آیت) او هغه څوک چې د یوې ذرې په اندازه د شر (او بدۍ) عمل کوي (نو) دی به هغه ووېني.** [88]

[88] (سورت زلزله: 7-8 آیتونه )

**د ډاروین** ځینې پیروان هغوی چې طبیعي انتخاب (یو غیر منطقي فزیکي پروسه) یو ځانګړی تخلیقي ځواک ګڼي چې پرته له کوم ریښتیني تجربوي اساساتو ټولې سختې ارتقایي ستونزې حل کوي، وروسته یې د باکتریایي حجرو په جوړښت او فعالیت کې د ډیزاین پیچلتیا ومونده.

نو د نورو عبارتونو استعمالول یې شروع کړل لکه «**ځېرکه**» باکتریا، «**مایکروبیل ځېرکتیا**»، «**پریکړه کول**» او «**د ستونزو حل کولو باکتریا**». او په دې توګه سره باکتریا د دوی په نوي خدای بدله شوه[89].

مشهور امریکایی لیکوال او کیمیا **پوه میچل بیهي** وایي:

[89] Atheism A Giant Leap of Faith. Dr. Raida Jarrar

**"زه مجبور یم چې د الله موجودیت ومنم چې د حجرې د معاینې لپاره د دې ټولو ګڼو هڅو پایله ده. هغه دا دی: په مالیکولري کچه د ژوند معاینه کول یو لوړ روښانه او تیز غږ دی".**

حقیقت دا دی چې دا مفکوره چې د انسان اصلیت شادو (بېزو) ده، یا د شادو (بېزو) څخه په تدریجي ډول رامینځته شوی هیڅکله د ډاروین له نظریاتو څخه نه و، مگر هغه وایي: **دا چې انسان او شادو (بېزو) اصل یو ګډ او نا معلوم اصل ته ورګرځي چې هغه ورته د (ورکې شوې حلقې) نوم ورکړی او هغه په ځانګړي ډول پرمختګ وکړ او انسان ترې جوړ شو، او سره د دې نه چې مونږ د مسلمانانو په توګه د ډاروین خبرې په کلکه ردوو، مگر هغه په هیڅ صورت کې دا ونه ویل**

**لکه څنګه چې ځینې فکر کوي: چې شادو (بېزو) د انسان پلار دی. او دا ثابته شوې ده چې ډاروین د خدای په وجود باور درلود، مګر دا نظریه چې انسانان د حیواناتو څخه دي، د ډاروین د پیروانو څخه په راتلونکي کې هغه وخت رامینځته شوه کله چې دوی د هغه په نظریه کې شامل کړل او دوی په اصل کې د ملحدینو له ډلې څخه وو.**

د ډاروین نظریه کومه چې وایي: **موږ دې کاڼناتو ته د تصادفي بدلونونو په پایله کې راغلي یو نه د یو لوی خالق له خوا، دا یوازې یوه تیوري ده او تر اوسه نه ده ثابته شوې، او دا ثابته شوې چې پخپله ډاروین کوم چې د دې تیورۍ موسس دی د ځان سره ډېر شکونه درلودل، او خپلو همکارانو ته یې ډېر لیکونه لیکلي چې**

**خپل شکونه او پښیماني یې پکې ښرگنده کړې، او ویلي یې دي: «دا ډېره سخته او یا هم ناممکنه ده چې تصور وکړو چې زموږ په څېر یو کاینات او په هغه کې یو مخلوق زموږ له بې شمېره انساني وړتیاوو څخه برخمن وي په پیل کې د ړانده چانس په واسطه پیداشوي، یا دا چې اړتیا د اختراع مور ده، او کله چې زه خپل شاوخوا ته گورم د دې موجودیت تر شا لومړی دلیل چې زه ورته هڅول کېږم هغه دا خبره ده چې یو هوښیار ذهن شتون لري، نو له دې امله زه د یو پروردگار په شتون باور لرم».**

د پرمختگ نظریه، چې موخه یې د یو خالق له شتون څخه انکار کول دي، د ټولو ژوندیو موجوداتو، حیواناتو او نباتاتو په پیدایښت کې مشترک اصل

بیانوي، او دا چې دوی د یو اصل څخه رامېنځته شوي چې هغه یو واحد حجروي ژوندی دی، او دا چې د لومړۍ حجرې جوړېدل په اوبو کې د امینو اسیدونو د راټولیدو پایله وه، چې په پایله کې یې د DNA لومړی جوړښت رامینځته کړ، کوم چې د یو ژوندي شي جینیاتي ځانګړتیاوې لري.

د دې امینو اسیدونو په یوځای کولو سره د ژوندیو حجرو لومړی جوړښت جوړ شو.

او د مختلفو محیطي او خارجي عواملو په پایله کې چې د دې حجرو د پراخیدو لامل شو، کوم چې لومړی سپرم جوړ کړ او بیا د غوښې یوې ټوټې ته یې وده وکړه او بیا یې کرپندونکي ته وده وکړه.

**(او په ځمکه ګرځېدونکی هر حیوان الله تعالی له اوبو څخه پیداکړی دی، نو په دوی کې ځېنې هغه دي چې په خپلې خېټې تګ کوي او په دوی کې ځنې هغه دي چې په دوه پښو تګ کوي او په دوی کې ځېنې هغه دي چې په څلورو ګرځي، الله تعالی چې څه وغواړي پیداکوي يې، بېشکه الله تعالی په هر شي باندې ښه قادر دی.** [90]

ساینس د یو عام اصل څخه د تکامل (ترقۍ) مفکورې لپاره قانع کوونکي شواهد وړاندې کوي، کوم چې قرآن کریم ورته اشاره کړې.

**«او مونږ له اوبو څخه هر ژوندی شی پیدا کړی دی، آیا نو دوی ایمان نه راوړي»؟** [91]

---

[90] (د النور سورت: 45 آيت)

[91] .(د الأنبياء سورت: ۳۰ آيت)

الله تعالی ژوندي مخلوقات هوښیار او په فطرتي ډول داسې پیدا کړي چې د خپل ګېرچاپېره چاپېریال سره سمون پیداکړي، او په اندازه، شکل او اوږدوالي کې وده کولای شي، د بېلګې په توګه په سړو هېوادونو کې پسونه یو ډول شکل او پوستکي لري چې له یخنۍ څخه یې ساتي او وړی یې زیاتېږي او کمېږي د هوا د تودوخې سره سم، او نور هیوادونه د دې بر عکس دي، شکلونه او ډولونه د چاپیریال له مخې سره توپیر لري، حتی انسانان په رنګ، ځانګړتیاوو، ژبو او شکلونو کې توپیر لري، ځکه چې هیڅ انسان د بل په څېر ندی، پرته لدې چې دوی انسانان پاتې کېږي او په بل ډول حیوان ته نه بدلېږي.

الله پاک فرمایلي:

**او د هغه له نښو څنې د اسمانونو او ځمکې پیدا کول دي او ستاسو د ژبو او ستاسو د رنګونو اختلاف (بېل والی) دی، بېشکه په دغو کې خامخا نښې دي د عالمانو (پوهانو) لپاره.** [92]

د پرمختګ نظریې لرونکی مشهور ساینس پوه جولیس دیوانټ په خپل کتاب:

The Ascent of Nature in Darwin's Descent of Man

۲۹۵ مخ کې وایي:

**«داروین په ژوره توګه باور درلود چې د ښځو رتبه د نارینه وو په پرتله خورا ټیټه ده! په ځانګړې توګه کله چې یې د بقا لپاره د مبارزې په اړه خبرې کولې. او هغه**

[92] (الروم سورت: ۲۲ آیت)

**به بې وزله، معيوب، پس پاتي خلک او ښځه يو ځای حسابول!**

او د هغه د انظريه وه چې د ښځې د دماغو کتله او د عضلاتو کچه په هغه اندازه نه دي کوم چې د سړي دي نو ښځه لدې کبله نشي کولی چې د سړي سره د بقا لپاره په مبارزه کې شامله شي، بلکې هغه په هغې کې يو ډول بيولوژيکي نيمګړتيا ويني ناشوني ده چې د دې نيمګړتياو باوجود دې سړي ته ورسيږي».

او دا په حقيقت کې يو (مادي) بېلتون دی چې د تکامل نظريې د پيروانو او ملحدېنو عقيدې په ګوته کوي، په ځانګړې توګه هغه کسان چې په اسلام کې د (ښځې) په حيثيت اعتراض کوي، هغه ښځه چې الله تعالی په

پیدایښت کې د انسان جوړه ګرځولی: **نو هغه د هغه نه پیدا شوې: چې دواړه یو بل ته لیوالتیا لري.**

الله تعالی فرمایلي:

**او د هغه له نښو څنې دا دي چې تاسو لپاره یې ستاسو له نفسونو ښځه جوړې پیدا کړي، د دې لپاره چې تاسو هغو ته (په مابله کېدو سره) سکون حاصل کړی او هغه ستاسو په مېنځ کې مېنه او مهرباني پیدا کړه، بېشکه په دغو کې خامخا نښې دي د هغه قوم لپاره چې ښه فکر کوي.** [93]

په 673 میلادي کال کې په فرانسه کې د ښځې د حقوقي ماهیت د معلومولو په اړه یوه اروپایي غونډه جوړه شوه، چې آیا دا انسانه ده که حیوانه، که انسانه

93 (الروم سورت: ۲۱ آیت)

وي نو آيا له ټولو حقوقو څخه برخمنه کېدلی شي او کنه؟

که حیوانه وي بیا له حقوقو څخه نشي برخمنه کېدلی.

له پرله پسې بحثونو وروسته دوی په اتفاق سره دې نتیجې ته ورسېدل چې ښځې انسانانې دي، خو له حقونو څخه ګټه نشي پورته کولی! د تکامل د تیورۍ په بنسټګر او د هغه په نظریې په باور کوونکو باندې د دې غونډې اغېز مستقیما ښکاره کېږي، او همدارنګه دا د نورو عقائدو په پرتله د اسلام او د هغه د قانون د برترۍ ثبوت هم دی، او همدارنګه د انسان په لاس جوړ شوي قوانین او عقیدې چې د ښځې انسانیت او کرامت ته په کمه ګوري، او هغه یو ارزانه، تش مال او لذت ګڼي لکه څنګه چې د تاریخ په واقعاتو کې دي،

او موږ لره دغه غونډه د دلیل په توګه د هغوی د بې وزلۍ او د فکري او اخلاقي زوال ښودنې ته کافي ده.

د جرمني ډاروینیستانو د ډاروین نظریه د انسان د ژوند د حرمت له منځه وړلو لپاره وکاروله. د ډاروین د تیورۍ پراساس، کوم چې وايي چې معلولیت لرونکي خلک د ژوند کولو وړ ندي، اډولف هټلر وړاندیز وکړ چې د جګړې وخت **"د لاعلاجې ناروغۍ څخه د خلاصون ترټولو مناسب وخت و."** ډېری آلمانانو نه غوښتل چې د هغو اشخاصو یادونه وکړي چې د دوی د **"حاکم جنسیت"** مفکورې سره سم ژوند نه کوي. په فزیکي او ذهني توګه معلولین د ټولنې لپاره د **"بې ګټې"** په توګه انځور شوي، او د آریایي جینونو پاکوالي ته یو ګواښ دی، او بالاخره دوی د ژوند وړ نه دي. د دویمې

نړیوالې جګړې په پیل کې، د رواني او فزیکي پلوه معلولیت لرونکي اشخاص د وژلو لپاره په نښه شوي و چې نازیانو د "**T-4**" پروګرام یا "**د مهربان مرگ**" په نامه یې یاد کړ.

او په حقیقت کې د قربانیانو جسدونه په غټو تنورونو کې وسوځول شول چې د سوخت تنورونه ورته ویل کېدل.

د بدبختیو، بدیو او دردونو شتون د ډېرو معاصرو مادیاتو فیلسوفانو د الحاد لامل و، چې په کې فیلسوف "**انتوني فلو**" هم شامل و، هغه د خپل مرگ څخه مخکې د الله په شتون اعتراف وکړ، او د "**پرودګار شتون لري**" په نوم یې یو کتاب ولیکه.

سره د دې نه چې هغه د شلمې پیړۍ په دویمه نیمایي کې د الحاد مشر و او کله چې یې د پروردګار شتون ومانه، ویې ویل:

**"د انسان په ژوند کې د بدۍ او درد شتون د پرودګار شتون نه ردوي، مګر دا موږ د الهي صفاتو بیاکتنې ته هڅوي."**

«**انتوني فلو**» په دې اند دی چې ناورین ډیر مثبت اړخونه لري، ځکه چې دوی د یو شخص مادي ورتیا هڅوي، نو دا هغه څه رامینځته کوي چې د هغه ارمان وي، او همدارنګه د هغه غوره رواني ځانګړتیاوې هڅوي او هغه د خلکو سره د مرستې لپاره هڅوي.

د بدۍ او درد شتون د تاریخ په اوږدو کې د انساني تمدنونو په جوړولو کې مهم رول لوبولی.

او ويې ويل:

**«"که څه هم د دې ستونزو د تشريح کولو لپاره څومره وړانديزونه شتون ولري، خو مذهبي تفسير به د منلو وړ وي او د ژوند له ماهيت سره به ډېر سم وي»**.

د رب العالمين له صفتونو څخه يو صفت حکمت دی، هغه هيڅ شی بې مقصده او بې هدفه نه پيدا کوي، موږ يې د دې لپاره پيدا کړي يو چې پر موږ رحم وکړي، موږ ته خوشحالي راکړي او موږ ته (خپل نعمتونه) راکړي، او ټول ښکلي انساني صفتونه د هغه د صفاتو څخه اخيستل شوي دي. او دا چې په دې نړۍ کې زموږ شتون د يو لوړ هدف او مقصد لپاره دی چې هغه د الله تعالی پيژندل او هغه ته توبه کول او له هغه څخه مستقيما مرسته غوښتل دي.

د رب العالمین پېژندنه د هغه د غوره نومونو او د هغه د عالي صفاتو په پېژندلو سره ترلاسه کیږي چې په دوه اساسي ډلو ویشل شوي دي چې هغه دادي: نیک صفتونه: او دا ټول هغه صفتونه دي چې د مهربانۍ، بخښنې، نرمۍ سره تعلق لري، او د هغوی له جملې نه عامه مهرباني، خاص مهرباني، روزي ورکوونکی، بخشش ورکوونکی، نېکي کوونکی، رحم کوونکی ... او داسې نور دي.

**د عظمت نومونه:** لکه هر یو صفت چې په توان، استعداد، لویي، او وقار پورې اړه لري، او د دې د جملې نه: **زورور، قهار، تنګسیا راوستونکی، ټېټوونکی ... او داسې نور دی.**

د الله تعالی د صفاتو په اړه زموږ پوهه د دې سبب کېږي چې مونږ د هغه بنده ګي په هغه  بڼه وکړو چې د هغه د عظمت او ستاینې سره ښایي او د هغه څه نه د هغه پاکي چې د شان سره يې مناسب نه وي، د هغه د رحمت په تمه او د هغه له غضب او عذاب څخه د مخنيوي لپاره. او د هغه عبادت د امرونو په عملي کولو، د ممنوعاتو څخه ځان ساتلو او د اصلاحاتو په کولو او د ځمکې په ابادولو کې دي. په دې اساس د دنيا د ژوند تصور د انسانانو لپاره د ازموينې په توګه ګرځي، تر څو الله پاک د متقيانو درجې لوړې کړي او په دې توګه د ځمکې د خلافت او په اخرت کې د جنت د ميراث مستحق شي، په داسې حال کې چې

فاسقانو ته به په دنیا کې ذلت وي او د دوی برخلیک به د اور عذاب وي.

خالق د طبیعت قوانین او د اداره کولو لپاره یې چارې وضع کړي دي چې د چاپیریال د خرابیدو او فساد مخنیوی کوي او په زمکه کې د اصلاح او په ښه توګه د ژوند پر مخ تللو په موخه دغه توازن برقرار ساتي . او هغه څه چې خلکو او ژوند ته ګټه رسوي همغه په ځمکه کې پاتې کېږي. او کله چې په ځمکه کې داسې آفتونه را منځ ته شي چې انسان ترې متاثره کیږي لکه ناروغۍ، اورلګیدنه (آتش فشانونه)، زلزلې او سیلابونه، نو د الله تعالی نومونه او صفتونه څرګندیږي لکه شفا ورکوونکی او ساتونکی د بیلګې په توګه، مریضانو ته په شفا ورکولو کې او بچ شوي انسان ته په ژغورلو کې،

یا د هغه د انصاف نوم د نورو ظالمانو او نافرمانانو په سزا کې، او د هغه د حکمت نوم د فرمانبردارو په محاکمه او امتحان کې څرګندیږي کوم چې صبر کوونکي ته ښه بدله ورکوي او بې صبرو او اعتراض کوونکو ته عذاب ورکوي، او په دې توګه انسان د خپل رب عظمت د دې ازموینو له لارې پیژني لکه څنګه چې د هغه ښایست د ورکړو د لارې پېژني. که یو څوک یوازې پرودګار د ښایست په صفتونو باندې وپیژني نو ګو یا که ده الله تعالی نه دې پېژندلی.

هغه څه چې له ازمایښتونو څخه پیښیږي د الله تعالی اراده ده، او هغه څه چې الله تعالی غوښتلي پېښ شوي، او د الله تعالی اراده په بشپړ حکمت پورې اړه لري او مطلق حکمت په مطلق خیر پورې اړه لري،

ځکه چې په وجود کې مطلق شر شتون نلري، او دا چې د دنیا ژوند چې انسان پکې ژوند کوي د ابدي وروسته ژوند په پرتله یوازې یوه شیبه ده، او بیا چې څومره تکلیفونه یې په دې دنیا کې ګاللي وي په جنت کې په یوې غوپې سره به ترې هېرشي.

که یو څوک د مثال په توګه پاڅي او بل کس ووهي تر دې چې د حرکت توان له لاسه ورکړي، نو د ظلم صفت یې خپل کړ او ظلم شر دی.

مګر د توان شتون د هغه چا سره چې امسا راخلي او یو بل کس پرې وهي شر نه دی.

او د هغې ارادې شتون چې الله تعالی ورته ورکړی هم شر نه دی.

او د هغه د خپل لاس په خوځولو باندې توان هم شر نه دی؟

او په امسا کې د وهلو د صفت شتون هم شر نه دی؟

دا ټول شته کارونه ښه(خیر) دي او د بدۍ صفت(شر) نه تر لاسه کوي تر څو چې له هغوی څخه په ناوړه توگه استفاده ونه شي، او هغه فالج دی لکه په تیر مثال کې، او د همدې مثال پر بنسټ د لړم او مار شتون شر ندی مگر کله چې انسان ورباندې پیښ شي نو ویې چیچي، نو الله تعالی ته د هغه په کارونو کې د شر نسبت نه کیږي کوم چې مطلق خیر دي، بلکې د هغو کړنو کې کوم چې د انسان له خوا د دې خیر د ناوړه استعمال له وجې رامنځ ته شوي.

او الله تعالی د دې بدۍ اجازه ورکوي د دې وجې نه چې د دې شر د وجې کوم خالص خیر منځ ته راځي لکه: **الله تعالی ته توبه کول او هغه ته ورګرځېدل، نو دا د مرض نه د روغېدو لپاره د ترخو درملو د خوړولو په څېر دي.**

د خالق په اړه تکراري پوښتنه چې انسانان دې ته اړ باسي چې داسې ژوند وکړي چې دوی هغه شان نه غواړي یوه بې بنیاده پوښتنه ده.

که الله تعالی وغواړي چې د مخلوق په اړه د خپل مخلوق نظر واخلي نو لومړی باید د دوی شتون درک کړي.

نو څنګه کیدلی شي چی انسان دې نظر ولري او هغه دې په نشت کې وي؟

دلته مسئله د شتون او نه شتون ده. له ژوند سره د انسان لېوالتیا او له هغه څخه وېره په دې نعمت باندې د هغه د رضایت تر ټولو ستر ثبوت دی.

د ژوند نعمت د انسان لپاره یوه ازموینه ده چې د هغه ښه انسان توپیر وکړي چې د خپل رب څخه راضي وي له هغه بد انسان څخه چې له هغه څخه ناراضه وي. نو د رب العالمین حکمت د پیدایښت څخه د هغه کسانو استخراج ته اړتیا درلوده چې په آخرت کې د هغه د عزت ځای ترلاسه کولو لپاره له هغه څخه راضي وي. او الله تعالی دا خبره په تأکېد سره کړې ده چې د کله نه چې هغه انسان ته امانت وربار کړی د هغوی د پیدايښت نه مخکې یې ټول حاضر کړي، او په خپل وحدانیت یې گواهان کړي دي.

او کله چې ستا رب د ادم له اولادې نه د هغوی له شاګانو نه د هغوی اولاد راواخېست او دوی یې په خپلو ځانونو باندې ګواه جوړ کړل، (او ورته ویې وېل:) آیا زه ستاسو رب نه یم؟

**دوی ووېل: ولې نه! مونږ ګواهي وکړه، (دا د دې لپاره) چې تاسو د قیامت په ورځ ونه وایئ چې بېشکه مونږ لدې نه غافله وو.** [94]

د هغې ورځې تر ټولو لوی ثبوت دا دی په کومه چې دوی د الله تعالی د وحدانیت ګواهي ورکړې چې هر یو انسان که مسلمان دی او که غیر مسلم د سختې ویرې په وخت کې د هغه سترګې بې اختیاره د مرستې د غوښتلو لپاره د اسمان لور ته پورته کېږي.

[94] (د اعراف سورت: ۱۷۲ آیت)

د چا د نه یادولو لامل دا دی چې که انسان ته یاد شي چې دې د الله تعالی په وړاندې ودرېدلی و او ګواهي یې ورکړې وه چې له هغه پرته بل معبود نشته مګر همدا دی، او بیا دا سړی په ځمکه کې په یو وخت او یا ځای کې موندل شوی وی، نو بیا خو به هیڅ امتحان نه وي. نو د ازمېښت راز په ایمان پورې اړه لري، او د ایمان راز په غیبو باندې په باور کولو کې دی، نو که غیب د هر چا په ذهن کې ښکاره، د لیدلو وړ او موجود وي، نو بیا خو غیب غیب نه ګڼل کېده.

په دې توګه سره ازموینې هیڅ مانا نه درلوده، او د ارادې د اختیار مفهوم بېخي له منځه تلو، که الهي ذات، مطلق حق او آخرت ټولو انسانانو ته په یقین سره معلوم وی، نو بیا ازموینه چېرته وه!

د مثال په توگه، که فرض کړو چې د زده کوونکو یوه ډله د امتحان تالار ته ننوته او امتحان پیل شو، هیڅ یو زده کونکي ته اجازه نه وه چې د ازموینې پای ته رسیدو پورې هغه حواله وگوري چې هغه ترې مطالعه کړې ده، مگر د ازموینې په جریان کې هغه نشي کولی حوالې ته وگوري؛ ځکه چې حوالې ته کتل د ازموینې مفهوم له اصل څخه لرې کوي.

مشهور المانی فیلسوف **ایمانویل کانت** وایي:

**«د عقل څخه د بهر نړۍ درک کولو کې زموږ کمزوري نیمگړتیا نده، بلکې دا د اخلاقو لپاره یو اړین شرط دی، او که انسان په مطلق شي باندې مستقیما خبریدلی نو بیا به هغه په خپلو چارو کې ازاد او رضا کار نه و».**

په دې توګه موږ اجازه نه لرو چې دا صحنه را په یاده کړو کومه چې په عالم الذر (هغه وخت کوم کې چې الله تعالی د ادم علیه السلام د شا نه د هغه اولاده د سرو مېږیو په شان پیدا کړه او په خپل وحدانیت یې ګواه کړل) واقع شوې ده تر دې چې د واک څه معنی پیدا شي، سربېره پر دې د عالم الذر لوظ یوازې د عذاب مستلزم ندی د هغه چا لپاره چې د پېغمبر دعوت ورته نه وي رسېدلی، نو هغه دلیل چې په هغه سره مکلفیت او بدله لازمېږي تر هغه وخته انسان ته نه رسېږي تر څو چې د پیغمبرانو هغه بلنه ورته نه وي رسېدلي چې دا یوازې د الله تعالی بنده ګۍ ته رابلي پرته د هېڅ شریک نه، نو که تابعداري یې وکړه نو نېکه

بدله به ورته ورکړل شي، او که نا فرماني يې وکړه نو سزا به ورکړل شي.

ايمان د شواهدو پر بنسټ ولاړ دی. او که شواهد زيات شي، نو ايمان او يقين هم زياتيږي، مگر غيب هيڅکله هم په حواسو نشي لېدل کېدی، که نه نو د ايمان تصور به پخپله سقوط وکړي.

موږ کولی شو د اوسط ژوند په اوږدو کې د روغتيا دورې او د ناروغۍ دورې پرتله کړو، يا د سوکالۍ او پراخۍ لسيزې او د هغه مقابل کې د ويجاړۍ دورې، او همدارنگه د ارام طبيعت او سکون پيرۍ او د هغې مقابل کې آتش فشاني او زلزلې پرتله کړو. موجوده خير له کوم ځای څخه پيليږي؟

هغه نړۍ چې د ګډوډۍ او تصادف پر بنسټ ولاړه وي ښه نړۍ نشي رامینځته کولی.

او انسان تر هغه پورې د روغتیا خوند نشي څکلی تر څو چې ناروغي تجربه نه کړي، او ښکلی تر هغه وخته نه پېژندل کیږي تر څو چې بدرنګ نه وي لیدل شوی.

د **ترموډینامیک** دویم قانون وایي چې په جلا شوي سیستم کې ټول انټروپي (د ګډوډۍ یا تصادفي درجې) پرته له کوم بهرني نفوذ څخه تل وده کوي، او دا پروسه بدلیدونکې نده. په بل عبارت، تنظیم شوي شیان به خامخا ټوټه ټوټه کیږي او له منځه به ځي تر څو چې دوی لره یو خارجي شي نه وي راټول کړي. په دې توګه ړانده ترموډینامیک ځواکونه به هیڅکله د خپل طرفه خه څه تولید نه کړي، یا به په لویه کچه دومره ښه

نه وي لکه څنګه چې دي، پرته لدې چې خالق دا تصادفي پيښې تنظيم نه کړي کومې چې په ښايسته شيانو کې ښکاري لکه: **ښکلا، حکمت، خوښي او مينه، او دا ټول يوازې وروسته لدې چې دا قاعده ثابته شي چې خير او شر استثنائي شيان دي.**

د بدۍ او دردونو په اړه زموږ ليد د دنيا د ژوند واقعيت او په هغه کې د انساني وجود د هدف په اړه زموږ په نظر پورې اړه لري، کوم چې د ديني خلکو په منځ کې د ماده پرستو سره توپير لري.

مادي ليد لورى په دې اند دى چې د دنيا د ژوند تر شا کوم هدف نشته چې د يو مقصد لخوا اداره کيږي، او دا چې که يو څوک مړ شو نو هغه هيڅ شى شو، ځکه چې د بېرته ژوند په تعقيب بله زنده ګي شتون نلري، نو

د انسان چې څومره وسه کېږي باید هغومره خوندونه ترلاسه کړي، نو په دې توګه هغه درد چې هغه یې احساسوي او هر هغه څه چې هغه له دې خوښیو څخه بندوي مطلق شر دی، او له دې نظره هغه بدۍ او دردونه چې یو سړی ورسره مخ کېږي په تصادفي مسئلو بدلیږي چې هغه په دنیا کې د خپل ژوند په اوږدو کې تیریږي دا هم په تصادفي ډول را منځ ته شول، نو بیا د یو مهربان، مینه ناک، پرودګار شتون منل چې دا زنده ګي برابروي د دوی لپاره بې ځایه او عبث خبره ده، او د دې معنی دا ده چې هر هغه څه چې دوی له دې خوښیو څخه منع کوي د هغوی لپاره درد ګڼل کیږي. لکه څنګه چې یو ماشوم فکر کوي چې

مور او پلار يې بد دي کله چې دوی دا د خپل نيکه د درملو له اخيستلو څخه منعه کوي.

انسان بايد لومړی خپل ځان ته وګوري مخکې لدې چې کبر او لويي هغه له حقيقت څخه لرې کړي، د انسان ګېر چاپېره که تکنالوجي او ساينس څومره ترقي وکړي، بيا هم انسان نشي کولی چې د ځان نه بل مخلوق جوړ کړي داسې چې همېشه پاتي وي او يا تر دې چې په ځان بسيا زنده ګي وکړي د خوراک، څښاک او هوا نه پرته او ان تر دې چې قضای حاجت ته هم ضرورت ونه لري، او انسان په دې پراخه فضا کې د داسې ژوند په لټه کې دی چې هغه ته د تلپاتې او خوښۍ زمينه برابره کړي، او هغه په يقين سره پوهېږي چې سپوږمۍ ته له محافظتي جامو پرته نشي رسېدلی،

یا پداسې موټر کې دننه شي چې د ځمکې د حد څخه يې لرې کړي، او دا ټول لدې ويرې چې مرګ ورته رانشي.

**ته ورته ووایه: تاسو کاڼي شئ، یا اوسپنه (۵۰) یا کوم داسې مخلوق له هغه قسم نه چې ستاسو په سینو کې لوی ښکاري، نو دوی به ژر ووايي: څوک به مونږ بیا راژوندي کوي؟ ته ووایه: هغه ذات چې تاسو يې لومړی ځل پیدا کړي یاست، نو ژر به دوی خپل سرونه تا ته (د استهزا په ډول) وخوځوي او وايي به: دا به کله وي؟ ته ووایه: امید دی چې دغه به ډیر نژدې وي (۵۱)**
**95**

95 (د الاسراء سورت)

**ویکتور فرانک وېلي: «نن ورځ خلک د ژوند هره وسیله لري، مګر د ژوند کولو هیڅ معنی نشته، کوم چې ژوند یو زندان جوړوي چیرې چې اوسېدونکي یې د ژوند او مرګ د دیوالونو تر منځ ژوند کوي، په بې معنی ژوند کې د هر ټک شخه وېره لري، هر درد یوه تصادفي او د نه پوهیدو وړ پیښه ده - چې هېڅ تېښته ترې نشته - دا یوازې د انرژۍ او مادې له مخې طبقه بندي کیدی شي، او د ګډوډۍ او خپګان پرته د بل هېڅ شي استازولي نشي کولی».**

دا دعوه چې یو ملحد نورو ته زیان نه رسوي او نشي کولی یو څوک بد چلند ته وهڅوي لکه څنګه چې ځینې مذهبي خلک د مذهب په نوم کوي؛ بې بنسټه ادعا ده.

دین ښو اخلاقو او له بدو کارونو څخه د ځان ساتلو ته رابلل کوي، او له همدې امله د ځینو مسلمانانو بد سلوک د هغوی د کلتوري عادتونو یا له دین څخه د ناپوهۍ او له صحیح دین څخه د هغوی د واټن له امله دی.

آیا موږ په نړۍ کې د کمونیزم د رامینځته کولو د هڅو په اړه ندي اوریدلي چې د ملیونونو مسلمانانو او عیسویانو د مرگ لامل شوي؟

یو کمونیست فیلسوف وایی:

**«موږ فکر کاوه چې موږ د الله پرته ښه یو، او د یو انسان انسانیت ساتو، موږ څومره په غلطه وو، موږ الله او انسان دواړه یو ځاي له منځه یوړل».**

له خلکو سره د ښو اخلاقو چلند د انسانیت د ګټې او د زمکې د آبادۍ په موخه په خالق باندې ایمان او د دین تر چتر لاندې د نړیوالو اخلاقو پیروي کولو څخه نشي مستغني کېدلی، ځکه چې د زمکې بیارغونه او ښه اخلاق د دین آخري هدف نه دی، بلکې په حقیقت کې دا دواړه یوه وسیله ده.

د دین هدف دا دی چې انسان خپل رب، بیا د هغه منبع، خپله لاره او خپل راتلونکی وپیژني، او ښه پایله او ښه راتلونکی نشي رشتیا کېدلی مګر یوازې د الله تعالی د رضا په حاصلولو د هغه په مستقیم ډول عبادت او تابعدارۍ سره، او د دې د حاصلولو لار د زمکې بیا رغونه او ښه اخلاق دي.

د انسانانو تر منځ مساوات يوه اخلاقي ځانګړتيا ده، طبيعي يا مادي او يا عقلي حقيقت ندی، خلک بې له شکه د مادي، طبيعي يا فکري نظره سره مساوي ندي، او په خالق او دين باندې د باور په اساس يوازې ضعيف خلک د مساوات ادعا کولی شي، دا چې انسانان يو شان دي يوازې هغه وخت ممکن دی چې انسان د الله مخلوق وي.

له هغه څه نه چې ما لوستلي او خوښ شوي مې دي: کله چې ملحد د بديو د شتون له امله د پرودګار له شتون څخه انکار کوي نو هغه د خپل ځان سره مخالفت کوي.

ملحدان دا مني چې دوی د پرودګار په وجود باور نه لري، ادعا کوي چې دوی يوازې په مادي او ظاهري

شیانو باندې باور لري، او له همدې امله دوی د ملایکو، پېریانو، آسماني پیغامونو، پیغمبرانو او معجزو په شمول د غیبي نړۍ څخه انکار کوي او په بدل کې د "طبیعت" په مسأله باندې اعتراف کوي. طبیعت یا ماده (چاپیریال) د دوی په اقرار سره په بشپړ ډول بې طرفه دی، دا نه د بدۍ د لازمي کیدو تابع دی او نه هم د خیر د لازمي کېدو تابع دی، پرته له دې چې دا دې د اخلاقو تابع یا سرچینه وي.

او که انسان د طبیعت نه پیدا وي، او خالص مادي وي، او چا سره چې یو څه نه وي هغه یې بل لره نشي ورکولی، نو ولې انسان د خیر، شر او اخلاقو په اړه بې طرفه نه و؟

ملحد ځنګه کولای شي په خپلو اخلاقو وویاړي، په داسې حال کې چې طبیعت د هغه د ادعا له مخې په اخلاقو نه پوهیږي؟

دا پدې معنا ده چې هغه اخلاقي مفکورې چې یو ملحد پرې ویاړي د هغه خالق لخوا ورکړه ده چې دا یې شتون ردوي، او دا هغه څه دي چې موږ ورته فطرت وایو، کوم چې الله تعالی په موږ کې ځای پرځای کړی ترڅو موږ د هغه پیغامونو ترلاسه کولو ته چمتو یو چې هغه یې مونږ ته د پیغمبرانو او رسولانو له لارې رارسوي، او همدا پیغام دی، هر چې ذهن دی نو د هغه په واسطه مونږ د نړۍ سره اړیکه نیسو:ا

غیبي - ځکه چې د ذهن یوه مهمه برخه خلاصه ده - نو موږ په آسماني پیغامونو پوهیږو.

**مادیت: چې مونږ وکولی شو د آسماني اخلاقي پیغام سره سم یې اباد یې کړو**[96].

برتانوي ملحد **ریچارډ ډوکنز** په خپل کتاب The River Out of the Garden of Eden کې وایي:

**«طبیعت بد ندی، مګر له بده مرغه دا بې پروا دی، او دا د انسان د پوهیدلو لپاره یو له خورا ستونزمنو درسونو څخه دی، ځکه چې دا زمونږ لپاره ستونزمنه ده چې دا ومنو چې ټول شیان نه ښه دي، نه بد، نه مهربانه دي او نه ډاروونکي، دا د انسان په دردونو باندې بې پروا دی، ځکه چې طبیعت هیڅ هدف نه لري».**

الحاد د عقل له منځه وړلو ته بلنه ده، او د منطق او عقل له پامه غورځول او د ساینسي افسانو پیروي کول

---

[96] د دکتور هیثم طلعت کتاب: شفاء لما فی الصدور.

دي، دا ټول د ساینس په نوم! پرته له الله تعالی، د هغه د کایناتو، او د هغه د قوانینو، او هغه نظرونه چې مونږ ته یې راکړي، داسې هېڅ شی به نه وي چې ساینس پوهان یې مطالعه کولی شي او یا ملحدین ترې انکار کولی شي.

د انسان اړیکه باید له خپل خالق سره له هرې اړیکې غوره او پیاوړې وي، نو مسلمان باید د اسلام د لارښوونو د پلي کولو کوشش وکړي، او دا اړیکه هغه اصلي اړیکه ده چې دې ته ټول خیرونه او د نورو درناوی کول ورپه برخه کوي.

ډیری خلک د شک، لټون او تاوان په دور کې تیریږي، او بشپړ آرام تر هغه وخته نشي تر لاسه کولی تر څو چې دوی د رب العالمین لاره ومومي. لکه یو ورک

شوی ماشوم چې د خپلې مور په لټه کې وي، او کله چې هغه ومومي، هغه د آرامۍ احساس کوي او پوهیږي چې دا هغه خوندیتوب دی چې هغه یې په لټه کې و. نو له همدې امله الحاد حقیقت ته په رسیدو کې د ښکاره ناکامۍ اعلان دی.

کله چې مور یو کورنی ځاروی اخلو نو د هغه څخه ترټولو لویه هیله مو فرمانبرداري وي، او دا ځکه چې مونږ هغه یوازې اخیستلی او پیدا کړی مو ندی، او الله تعالی لره اوچت صفات دی، نو مونږ د خپل خالق په اړه څه فکر کوو؟

آیا زمونږ نه د اطاعت، عبادت او تسلیمۍ حقدار ندی، او مونږ په دې دنیاي سفر کې په ډیرو شیانو کې د خپلې ارادې خلاف تسلیمیږو، زمونږ زړه ټکان کوي،

زموږ د هاضمي سیستم کار کوي، زموږ حواس په بشپړ ډول خبر دي، نو مونږ باید په خپلو نورو چارو کې یوائې الله تعالی ته تسلیم شو، کوم چې مونږ ته پکې اختیار راکړل شوی تر څو چې مونږ په سمه توګه خوندیتوب ته ورسیږو.

دا خبره چې د عقیدې مفکوره د ماشومانو د تفریح کیسې یا د ښکلي خوبونو لیدونو څخه پرته بل څه ندي چې یو انسان له اندیښنو څخه لرې کوي، او نور هیڅ هم نشته یوه بې اساسه خبره ده. د یو لوی خالق پر وجود باور چې مونږ یې د یوې موخې لپاره پیدا کړي یو او له مرګ څخه وروسته همیشه نعمتونه زمونږ په انتظار دي دا یو حقیقت دی چې زمونږ په زړونو کې ځای پر ځای شوي دی، او دا ښکلی حقیقت د الحاد

له بدو خوبونو څخه غوره دی کوم چې د انسان نه هیڅ شي جوړوي، له هیڅ شي څخه راغلی، او هیڅ شي ته به ورگرځي. آیا یو ملحد به د خپل زوی ځواب ومني کله چې هغه ترې وپوښتي چې هغه څه غواړي چې لوی شي او ورته ووایي: هیڅ شی؟

هغه به دا ځواب ونه مني او خپل زوی ته به د کار، زده کړې او په راتلونکي کې د ارزښتناکه شخص د پیدا کولو لپاره هر ممکنه هڅه وکړي.

نو ژوند لنډ دی، او مرگ ناڅاپه راځي، او ټول هغه څه چې مونږ یې لرو د پیسو او بچو نه ختمېدونکي دي، یا به مړه کیږو او شاته به یې پریږدو، یا به یې د مرگ څخه مخکې په خپل ژوند کې له لاسه ورکوو.

ژوند د ناول یوازې یو څپرکی دی چې ډیری فصلونه لري، مرگ د کیسې پای نه بلکې پیل دی. انسان د یو لوی او لوړ هدف لپاره پیدا شوی، او هوښیار او چالاک انسان هغه دی چې د مرگ نه وروسته زنده گۍ لپاره پلانونه جوړوي.

او دا فرصت تر هغه وخته پورې شته چې انسان ژوندی وي، او هغه دا فرصت دی چې په یو خالق باندې ایمان ولرو، هغه ذات چې په پاچاهۍ کې یې هیڅ شریک نه لري او نه ورله اولاد شته، او نه د انسان یا حیوان او یا بوت او یا تېږي په شکل کې وجود لري، او په مستقیم ډول د دې خالق عبادت کول، او د اړتیا په وخت کې د هغه څخه غوښتنه کول او د گناه په وخت کې هغه ته

مستقیما توبه کول پرته له کوم راهب، کاهن، یا بل کوم منځګړي.

## دا هغه دین دی چې د اسلام د دین په نوم یادیږي.

له همدې امله، د دنیا ژوند د هغه ابدي سفر پیل دی چې انسان یې له مرګ نه وروسته په بېرته راژندې کېدلو او حساب کتاب سره پېلوي او د هغه نه وروسته بیا بدلې ورکول دي لکه څنګه چې مو مخکې یادونه وکړه، اسلام په دې نظر دی چې په دې دنیا کې زمونږ شتون د یو سپېڅلي هدف او مقصد لپاره دی چې هغه د الله تعالی پېژندل، د هغه عبادت کول او مستقیماً هغه ته رجوع کول دي.

**هر سا لرونکی دمرګ (مزه) څکونکی دی او یقېنا همدا خبره ده چې تاسو ته به د قیامت په ورځ ستاسو ثوابونه**

**(پوره) پوره در کړی شي، نو څوک چې له اور (د جنهم) نه لرې کړی شو او جنت ته داخل کړی شو، نو یقېنا هغه کامیاب شو، او دنیایي ژوند یوازې د غولېدلو سامان دی.** [97]

بېشکه د اسلام قبلول اسانه او ساده دي.

تهول هغه څه چې باید ترسره شي الله تعالی په یووالي او د هغه د پیغمبر صلی الله علیه وسلم د پیغمبری گواهي ورکول او د هغې سره سم عمل کول دي، او دا د یوې جملې په ویلو سره چې د ایمان د شاهدی (شهادت کلمې) په نوم یادېږي - تر سره کیږي - او هغه دا ده:

[97] (د ال عمران سورت: ۱۸۵ آیت)

**زه شاهدي ورکوم چې له الله پرته بل معبود نشته، هېڅ شریک ورله نشته، او ګواهي ورکوم چې بېشکه (محمد صلی الله علیه وسلم) د الله تعالی بنده او پېغمبر دی.**

**او ګواهي ورکوم چې بېشکه د الله تعالی ټول پېغمبران حق دي.**

**او ګواهي ورکوم چې بېشکه جنت حق دی او اور (د جهنم) حق دی.**

په منځني ختيځ کې عيسويان، يهوديان او مسلمانان د (الله) کلمه د پرودګار لپاره کاروي، چې معنی يې يو ريښتينی د عبادت مستحق ذات دی، د موسی او مسيح معبود دی، او خالق ذات په قران کريم کې خپل ځان په "الله" او نورو نومونو او صفتونو سره معرفي کړی.

**د "الله" کلمه د عهد قدیم په زړه نسخه کې (89) ځله ذکر شوې ده** (سفر التكوين 4: 2) او نور ډیر.

**نن ورځ ځینو پوهانو د (الله) د کلمې د کارولو خبره د سنسکرتې ژبې په پخوانیو نسخو کې د هندو کتابونو په نسخو کې د واحد او یوازینی پرودګار ته د اشارې په توګه کارولې ده.** [98]

قرآن کریم وروستی کتاب دی چې د خالق له خوا رالیږل شوی، پداسې حال کې چې مسلمانان د ټولو هغو کتابونو په اصلي نسخو باور لري چې له قرآن څخه مخکې لیږل شوي دي (د ابراهیم صحیفې، زبور، تورات او انجیل ... او نور).

[98] ("الله" په ریګویدا کتاب 2 حمد 1 آیت11 کې).

مسلمانان په دې عقيده دي چې د ټولو کتابونو اصلي پيغام خالص توحيد و (په الله تعالى باندې عقيده او يوازې د هغه عبادت کول په مستقيم ډول، نه د يو ولي يا پادري له لارې، او نه هيڅ زوی لري، او نه د يو انسان او يا يوې ډبرې په شکل کې ننوتلی).

قرآن د پخوانيو آسماني کتابونو په څېر، د يوې ډلې يا يوې ځانګړې فرقې له خوا له بلې پرته نه دی انحصار شوی، او نه يې مختلفې نسخې شتون لري، او نه پکې هيڅ بدلون راغلی، بلکې دا د ټولو مسلمانانو لپاره يوه نسخه ده. او قرآن د هر چا په لاس کې دی داسې چې په لمانځه کې لوستل کيږي او د ژوند په ټولو چارو کې ورته ورګرځېدل کيږي، د نړۍ ټول مسلمانان د قرآن کريم تلاوت داسې کوي لکه څنګه چې د رسول الله

صلی الله علیه وسلم او د هغه د ملګرو په وخت کې لوستل کېده، پرته له بدلون څخه. او د قرآن کریم اوسنۍ ژباړې یوازې د قرآن کریم د معناګانو ژباړې دي.

خالق د قران کریم په ډیرو آیتونو کې د خپل ځان په څرګندولو کې د "مونږ" کلمه کاروليې ده چې دا په عربي ژبه کې د قدرت او عظمت څرګندونه کوي، او همدارنګه په انګلیسي ژبه کې چې "وي؛ متکلم" یادیږي، نو چیرې چې د جمعې ضمیر کارول کیږي په دې کې د یو شخص لوړ مقام ته اشاره کیږي (لکه پاچا، چار سمبالی، یا سلطان).

په هرصورت، قرآن کریم تل د الله تعالی په یووالي ټینګار کړی په هغه څه کې چې په بنده ګۍ پورې تړاو لري.

لماذا الدين؟ رحلة من الذاكرة. فاتن صبري

www.fatensabri.com

شفاء لما في الصدور. دكتور هيثم طلعت

وهم الإلحاد. دكتور عمرو شريف

مقال رد القرآن على الملحد ستيفن هوكينغ في نفي الروح والخالق. د. محمود عبد الله إبراهيم نجا

www.islamhouse.com

www.quranenc.com

الرسالة الحقيقية للمسيح عليه السلام في القرآن والإنجيل. 2017، په انګلیسي ژبه لیکل شوی، او (١٥) ژبو ته ژباړل شوې.

المفهوم الحقيقي للإله. 2018، په انګلیسي ژبه لیکل شوی، او (۷) ژبو ته ژباړل شوی.

لماذا الإسلام؟ 2019، په انګلیسي ژبه لیکل شوی، او (۱۳) ژبو ته ژباړل شوی.

عین علی الحقیقة. 2020، په انګلیسي ژبه لیکل شوی، او (۴) ژبو ته ژباړل شوی.

لماذا الدین؟ رحلة من الذاکرة، 2021، په عربي ژبه لیکل شوی، او انګلیسي ته ژباړل شوی.

هل القرآن کلام الله؟ 2021، په عربي ژپه لیکل شوی.

زه ګواهي ورکوم چې بېشکه نشته لایق د عبادت په حقه سره مګر یواځې الله تعالی دی چې هېڅ شریک ورله نشته.

او گواهي ورکوم چې محمد (صلى الله عليه وسلم) د الله تعالى بنده او پيغمبر دى.

او گواهي ورکوم چې بېشکه د الله تعالى ټول پيغمبران حق دي.

او گواهي ورکوم چې بېشکه جنت حق دى او اور (د جهنم) حق دى.

www.fatensabri.com

faten@fatensabri.com

faten.sabri@yahoo.com

# فهرست